مکمل و مدلل

# مسائلِ امامت

## په قندهاري پښتو

امام او د لمانځه و امامت سره د متعلقه
مسائلو او احکامو يو جامع کتاب او دار العلوم
ديوبند د حضرات مفتيانو کرامو د تصديق او تائيد سره

مؤلف
مولانا رفعت قاسمي
مدرس دار العلوم ديوبند

مکتبہ رشيديہ
سرکی روڈ کوئٹہ




# کفایت دینی کتب خانہ

رابطہ نمبر

کفایت اللہ ٹیلی گرام واٹس

ایپ نمبر

+923247442395

واٹس ایپ

+923052488551

نام کتاب . پښتو مسائل امامت
مرتبه : مولانا محمدرفعت قاسمي
پښتو ترجمه : حافظ عبدالرحمن محمدزاني
کمپوزنګ : عزیزکمپیوټر سینټر خلجي کالوني سریاب
موبائل نمبر : ۰۳۰۳-۶۱۸۱۳۰۹
تعداد : ۱۰۰۰ ټوکه
تصحیح / نظرثاني : مولوي حمدالله اغا صاحب
ناشر : مکتبه رشیدیه سرکي روډ کوټه
موبائل نمبر : ۰۳۳۳۷۸۲۵۴۸۴
طبع : لاهور
قیمت :
دنشرنیټه : ۲۰۰۶ء
طبع او اهتمام : محمدساجد



## ﴿دمضامينوفهرست﴾

## رائے گرامی

**حضرت مفتی نظام الدین صاحب اعظمی مدظله مفتی دار العلوم دیوبند**

باسمه سبحانه

الحمدلله والصلوٰة علیٰ اهله وعلیٰ آله واصحابه اجمعین

وبعد:پیش نظررساله تألیف دحضرت مولاناقاری رفعت قاسمیؔ صاحب سلمه دموصوف دنورورسالوپه رقم داهم ډیره دمستندوحوالوسره تیاره سوی ده اود امامت پراکثره ضروری مسائلوباندی مشتمله ده.

درسالی خصوصیت دادی چی هیڅ یوه مسئله ئی بی له مستندی حوالی څخه نه ده ور کړی.په حواله اخیستوکی ئی ډیرداحتیاط څخه کاراخیستی دی.دمعتملوکتابو څخه ئی بعینه عبارتونه رااخیستی دی.بس له دی وجه ددی رسالی فائدی ډیری لوړی دی.اوپه عوامواوخواصوکی غرض دهری طبقی دائمه مساجدلپاره بی اندازی فائده منده مجموعه تیاره سوی دی.

دالله څخه دُعاکووچی داپه خپل حضورکی قبول کړی.اوموصوف ته دفائده منلورسالو دلیکلواودشائع کولوتوفیق ورکړی.آمین.

فقط

**العبدنظام الدین اعظمی**

**مفتی دار العلوم دیوبند**

**۱۴۰۸/۸/۲۴**

# ﴿تقريظ﴾

حضرت مولانامفتی محمدظفیرالدین صاحب مدظله مفتی دارالعلوم
دیوبند

بسم الله الرحمٰن الرحيم

الحمد لله وَكَفٰى وَسَلام عَلٰى عِبَادِهِ الذين اصْطَفٰى

لمونځ یوداسی عبادت دی کم چی پرهرعاقل بالغ مسلمان باندی فرض دی اوپه ورځ کی پنځه وخته په مسجدکی په جماعت باندی داداکولو حکم ئی سوی دی۔الحمدلله مسلمان داپر ځای کوی نوله دی امله زمونږ اکثره مسجدونه آبادمعلومیږی۔

دمسجدامامت یادلمانځه امامت پرخپل ځای باندی یواهمه ذمه داری ده۔په نبوی زمانه کی دغه ذمه واری پخپله نبی کریم ﷺ پرغاړه وه۔ده مبارك پخپله د لمنځوامامت ورکاوی۔کله چی دی مبارك ناجوړه سونوپردغه عظیم منصب باندی ئی ده ﷺ خپل یارغارحضرت ابوبکرالصدیق رضی الله تعالٰی عنه فائز کړی۔اودارقم یکے بعددیگرے خلفاء راشدینؓ پردغه مقام باندی فائزکیدل۔

هم دغه وجه ده چی اسلام پرفغه عظیم منصب باندی دعظیم



شخصیت والادفائزکیدوتأکید کړی دی۔لیکن افسوس دادی چی نن ورځ ترټولودغه منصب زیات پست پاته دی۔دبی کاره شخه دبی کاره سړی انتخاب ددغه منصب لپاره کیږی۔اوخاص عام دغه خوښه وی۔

الله جل شانه دی ومحمدرفعت قاسمیؔ ددارالعلوم اُستادته خیر ورکړی چی هغوی ددغه منصب اهمیت ومخ ته کښیښودی اودامامت سره متعلق ئی هغه ټول مسائل سره یو ځای کړه کم چی دفتاوٰی په کتابوکی سره پاشل سوی ؤو۔قابل نکریوه مسئله هم داسی نه ده چی په دی کتاب کی دی نه وی راوړه سوی۔

ترنظرلاندی "دامامت مسائل" نومی کتاب زمونږدمسلمانانولپاره یوه عظیمه تحفه ده۔د کم شخه چی هرلمونځکونکی په آسانی سره استفا ده کولای سی۔دقاری صاحب دوه دری کتابه ددی ترمخه هم چاپ سوی دی اوداهل علم ومخ ته راغلی دی۔اوعا م مسلمانان دهغه شخه مستفیدهم سوی دی۔الله تعالٰی دی دهغه دغه خدمت قبول کړی اودده لپاره دی الله پاك زاد آخرت جوړ کړی۔

طالب دُعا

محمدظفیرالدین غفرله

مفتی دارالعلوم دیوبند

۲۵ رمضان المبارك ۱٤۰۸ھ

# ﴿عرض مترجم﴾

ویاړو په دی چی الله پاک دپیرو راهسی مسلمانان پیدا کړی یواو بیاپښتانه.دمودومودراهسی داقوم مسلمان دی.یعنی اسلامیت دده په خټه کی اخښلې دی.نورهرڅه چی کوی خومسلمان به وی.ددی سره سره په دی هم ویاړوچی حنفیان یو.پرسُنت ولا ړدی قوم اوددی مذهب خلقولپاره دالازمی ده چی هغه په خپل مذهب پوه سی.له بده مرغه زمونږدسیمی زیات أئمه مساجددامامت دمسائلو څخه ناخبره دی کم چی یونبوی ﷺ وظیفه ده.نو هڅه می و کړه چی.دمحمدرفعت قاسمیؔ صاحب دغه بی بهاکتاب چی دامامت د مسائلوپه باره کی دی پښتوترجمه کړم.اودازمادیوملګری مولوی حمدالله آغایوخواهش هم ؤو.هیله ده چی کتوربه ثابت سی.الله دی قبول کړی.آمین

حافظ عبدالرحمٰن محمدزائی

شنبه ۱۰/ستمبر ۲۰۰۵



# ﴿عرض مؤلف﴾

بسم الله الرحمٰن الرحیم

نحمده ونصلی علٰی رسوله الکریم

ا مابعد:

په شریعت کی دلمانځه دامامت مسئله لوی اهمیت اوعظمت لری ، امام چونکه دټولو مقتدیانو ذمه واره وی له دی وجهی دامام دمقررولوپه سلسله کی شریعت یو څه شرطونه اوضابطی بیان کړی دی اودائی ویلی دی چی ددغه جلیل القدره منصب لپاره کم سړی لائق کیدلای سی.اوبدده دمقررولو په وخت کی باید سړی دکمو خبرو لحاظ وساتی.اوداچی دامامت حق وکم خلکوته حاصل دی.اوددی بلندوبالامنصب فرائض اودده سره متعلق مسائل څه دی.

احقرپه زیرنظررساله "دامامت مسائل" کی مستنداومفتی به اقوال د خپل بساط په اندازه مدلل اوپه عام فهم انداز کی سره یوځای کړی دی.دا ټوله دالله رب العزة فضل اوکرم دی اودخپل مشفق اُستادانواومفتیانو کرامو د توجه ثمره ده.الله تعالٰی دی قبول کړې اوزمالپاره ده آخرت زادجوړکړی.

رَبَّنَاتَقَبَّلْ مِنَّااِنَّکَ اَنْتَ السَّمِیْعُ الْعَلِیْمُ

دذعامحتاج

محمدرفعت قاسمیؔ

مدرس دارالعلوم دیوبند

# ﴿بسم الله الرحمٰن الرحيم﴾

## ﴿امامت﴾

ددین په ټولو اعمال خیر کی لمونځ دټولو څخه اهم او مقدم شی دی.

په دینی نظام کی ددی درجه او مقام هغه دی کم چی دانسان په بدن کی دزړه مقام دی. دلمانځه امامت د هیڅ شک او شبهی نه علاوه یو عظیم الشان دینی منصب او ذمه واری ده. بلکه دا درسول الله ﷺ نائب توب دی. نو له دی امله دالازمه ده چی امام دی هغه سړی جوړسی کم چی په موجوده لمونځ کونکو کی دنورو په نسبت ددی عظیم منصب لپاره زیات اهل او لائق وی. او دا هغه څوک کیدای سی کم چاچه د رسول الله ﷺ سره نسبت زیات وی په دینی اعتبار. دنبی علیه الصلاة والسلام په میراث کی مهم میراث قرآن مجید دی. نو کم سړی چی دایمان په نور منورسی نود هغه وروسته به دده دقرآن مجیدسره زیات تعلق وی. قرآن مجیدئی زده کړی او خپل زړه ته ئی کښته کړی. اودقرآن په دعوت اوتذکیرسره او احکاماتوئی ځان پوه کړی او دائی په خپل ځان کی جذب کړی او په خپل ځان کی ئی طاری کړی. او س نو دی دنبی کریم ﷺ د خاصوقریبانو یو خاص قریب دی. او دهغه خلقو په مقابله کی څوک چی په دی سعادت کی دده څخه وروسته دی به دی دحضور ﷺ ددی نائبتوب یعنی امامت لپاره زیات اهل اوموزون وی. او که بالفرض



ټول لمونځ کونکی په دی لحاظ سره برابروی نو چونکه دقرآن مجید څخه وروسته دسُنتو درجه ده نو په دی صورت کی به ترجیح دله ورکول کیږی. څوک چی دسُنت او شریعت په علم کی دنورو خلقو څخه امتیاز لری او که بالفرض په دی لحاظ هم ټول سره برابرؤو نو بیا هغه څوک اهل دی چی په دوی کی تقوٰی داره، پرهیزګاره او په محاسن او اخلاقو کی ممتازوی نو بیا هغه دامامت لپاره احق دی. او که بالفرض په قسم صفاتو کی هم سره یو رقم ؤونو بیا به دعمر په لحاظ و کتل سی کم یو چی په عمر کی زیات وی هغه دامامت لائق دی. ځکه چی دعلم لوی والی او بزرګی هم یو مسلّمه فضیلت دی. په هرحال دامُت لپاره دا اصولی ترتیب بالکل دعقل سلیم مطابق او مقتضاء حکمت دی او دا درسول الله ﷺ تعلیم او هدایت دی.

## ﴿دامامت ترتیب﴾

عن ابی مسعود الانصاری رضی اللّٰہ تعالٰی عنه قال قال رسول الله صلی الله علیه وسلم يَؤُمُّ الْقَوْمَ اَقْرَأُهُمْ لِكِتَابِ اللهِ فَاِنْ كَانُوْا فِي الْقِرَاْةِ سَوَاءٌ فَاَعْلَمُهُمْ بِالسُّنَّةِ فَاِنْ كَانُوْا فِي السُّنَّةِ سَوَاءٌ فَاَقْدَمُهُمْ هِجْرَةً فَاِنْ كَانُوْا فِي الْهِجْرَةِ سَوَاءٌ فَاَقْدَمُهُمْ سِنًّا وَلَا يُؤَمَّنَّ الرَّجُلَ فِي سُلْطَانِهٖ وَلَا يَقْعُدُ فِي بَيْتِهٖ عَلٰى تَكْرِمَتِهٖ اِلَّا بِاِذْنِهٖ رَوَاهُ مُسْلِم)

**ترجمه:** دحضرت ابو مسعود دانصاری رضی اللّٰہ تعالٰی عنه څخه روایت دی چی نبی ﷺ فرمائی چی دیوی ډلی امامت دی هغه څوک وکړی چی په

دوی کی دټولو ښخه زیات دقرآن کریم ویونکی وی. که چیری په دی کی سره برابروه نوبیادی په دوی کی هغه ښوک ددوی امامت و کړی چی په دوی کی ئی تر ټولو دمخه مهاجر سوی وی. او که چیری په هجرت کی هم سره برابروه نوبیا دی هغه ښوک امامت و کړی چی پلوی کی دعمرد لحاظه مشروی. او یو ښوک دی دبل چاپه سیادت په کلی اویاپه حکمت کی دهغه خلقوامام نه جوړیږی. اودکوربه په کور کی دی دهغه پرخاص ځای باندی نه کښینی. بلکه دهغه په اجازه سره. (دا روایت صحیح مسلم شریف کړی)

**تشریح** په دی حدیث شریف کی دلفظ "اَقْرَأُهُمْ لِكِتَابِ اللهِ" لفظی ترجمه هم دغه ده چی کمه چی دلته وسوه. یعنی دقرآن زیات ویونکی به وی. اوددی مطلب دقرآن حفظ دی. اونه صرف دقرآن حفظ بلکه دقرآن خاص علم اود قرآن سره خاص شوق مراددي.

دنبی کریم ﷺ په زمانه کی چی به کم چاته قاری یاقراء ویل کیدل دهغوی امتیازهم داؤوچی هغه به حافظ ؤواودقرآن عالم به ؤ او دقرآن مجید سره به ئی خاص محبت ؤو. پردغه اساس باندی به ددی حدیث شریف مطلب داوی چی د لمانځه د امامت لپاره موزون اواهل سړی هغه دی دچا چی دکتاب الله په باره کی علم اودقرآن مجید سره شغل اوتعلق په نوروخلقو کی لوړاو اُوچت وی. ظاهره خبره ده چی د نبی کریم ﷺ په زمانه کی د



قرآن سره تعلق اوشغل تر ټولولوی امتیاز درلودی. اوهم دا دفضیلت معیارؤو. په هغه وخت کی چی دچاپه دی سعادت کی ښومره زیاته حصه وه په هغه اندازه باندی هغه دنبی کریم ﷺ دخاص وراثت او امانت حامل اوامین ؤو. د قرآن دفضیلت ښخه وروسته دسنت اودشریعت علم د فضیلت دوئم معیار ؤو. او دا دواړه علمونه یعنی دقرآن علم اودسُنت علم چی به دچاسره ورسره ؤواوعمل به ئی هم ورسره ؤو. اګرچه هلته دعلم بلاعمله هیڅ وجود نه ؤو.

دفضیلت دریم معیاردنبی کریم ﷺ په دغسی خاص چارپیریال کی په هجرت کښې وړاندی والی ؤو. نوپه دی وجه په حدیث کی په دریم نمبر کی ددی ذکرسوی دی. خوبیاداشی پاته نه سو. نوپه دی وجه فقهاؤ د دی په ځای کی په صلاح اوتقوی کی فضیلت اوفوقیت دترجیح دریم معیار ګرځولی دی اودابالکل صحیح دی

دترجیح څلورم معیارپه دغه حدیث شریف کی دعمرمشروالی کنټرول سوی دی. چی که دپوره ذکر شوودریومعیارونوپه لحاظ سره ښوک فائق او قابل ترجیح نه وی نوبیابه هغه ښوک لائق وی چی دعمرد لحاظه پرنورو باندی مشروی. دحدیث شریف په پای کی دوی نوری خبری هم راوړه سوی دی

(۱) هغه داچی کله یو ښوک دبل چا د امامت اویاسیادت په حلقه کی راشی

نو که څه هم دی زیات عالم وی بیادی هم هلته پخپل سرباندی امامت نه ور کوی.بلکه دهغه ځای په امام پسی دی اقتداء و کړی.او که چیری هغه امام په خپله خوښه سره اجازه ورته و کړی اوتاکیلورته و کړی نوبیاپرواه نلری.

(۲)داچه کله یوڅوک دبل چاکره ولاړشی نومیلمه دی دکوربه پرخاص ځای باندی نه کښیني.که چیری هغه پخپله خوښه سره هغه خپل ځای ور پریښوونوبیاپرواه نکوی.ددی دوارخبرو حِکمَتونه او مصلحتونه بالکل ښکاره دی.اومونږتاسی پخپلوسترګولیدلی دی.

## ﴿کم څوک چی په تاسی کی بهتره وی هغه امام کړی﴾

**ن:** عبدالله بن عمررضی الله تعالیٰ عنه قال قال رسول الله ﷺ اجعلوا أئمتکم خیارکم فَاِنَّهُمْ وَفْدُکُمْ فِیْمَا بینکُمْ وَبَیْنَ رَبِّکُمْ (رواه الدارقطنی والبیهقی (کنزالعمال)﴾

**ترجمه:** دحضرت عبدالله بن عمررضی الله تعالیٰ عنه څخه روایت دی چی نبی کریم ﷺ وفرمایل چی په تاسو کی چی څوک ښه اوبهتره وی هغه امام جوړ کړی.ځکه چی امام ستاسو اودالله په مابین کی نمائنده وی.

**تشریح:** داخبره بالکل ښکاره ده چی امام دټولی جمعی لخوادالله په حضور کی نمائندګی کوی.نوپه دی وجه داخبره په خپله دجَمْعِیْ په خلقوباندی فرض دی چی هغوی ددی اهم اومقدس منصب لپاره په خپل



مابین کی یوبهترین سړی وټاکي.

رسول الله صلی الله علیه وسلم چی ترڅوپوری په دی دُنیاکی جلوه افروز ؤو نوپخپله به ئی امامت کولو او کله چی مرض الموت کی کمزوری سونودعلم اوعمل په لحاظ سره ئی دامُت افضل ترین سړی حضرت ابوبکر الصدیق رضی الله تعالیٰ عنه ئی دامامت لپاره مقرر کړی.

دحضرت ابومسعودانصاری رضی الله تعالیٰ عنه په دی پورتنی حدیث شریف کی چی دامامت دحق کم تفصیلی ترتیب بیان سوی دی د هغه منشاء هم په اصل کی دا ده چی په ټولنه کی کم سړی غوره اوبهتر وی هغه دی امام جوړسی. "اَقْرَأُهُمْ لِکِتَابِ اللهِ ، اَعْلَمُهُمْ بِالسُّنَّةِ.......الخ داټول هم ددی غوره والی اوافضلیت فی الدین کی تفصیل دی.

خوافسوس خبره داده چی په وروستیوزمانوکی ددی اهم هدایت څخه ډیر تغافل اختیارسوی دی او ددی په وجه دامُت ټول نظام درهم برهم سو.(معارف الحدیث ۳/ ۲۱۷)

دامام لپاره صحیح معیاراورهنمااصول هم دادی چی دده لمونځ مختصراوسپک رقم نه وی.خوورسره مکمل اوتام هم وی یعنی هرر کن او هرشی ئی سم وی او دسنت نبوی برابراداسی.(معارف الحدیث ۳/ ۲۲۲)

"خوغم دادی چی نن صباخاص کردافغانستان اوپاکستان په ځینو

علاقوکی د امامت شرط صرف اوصرف ارزانی.ده.یعنی خلق هغه امام دروی
چی لږتنخواه غواړی اوپه ډیرلږشی باندی قناعت کوی.اودارقم امام د دی پر
ځای چی دخلقومقتداء وګرځی اوس داسی شکل اختیار کړی دی لکه
مزدورالیعاذبالله.دازمو نږددین انحطاط اوکمزوری ده.په دی کارکی علماء
حکومتونه اوپه خاصه بیاعوام ذمه واره دی. ولی چی دامشهوره ده چی خلق
وائی خاص کرپه روژه مبارکه کی چی راځی په فلانکی امام پسی لمونځ او
تراویح وکړوولی چی هغه ئی په ۲۰ دقیقی کی هر څه خلاصوی. یعنی مونږ
لکه هغه مُرداربوره وری چی دپورور کونکی غاړه هسی په یوشی باندی ور
خلاصه ؤو.چی هسی په نام یوشی وی.چی دهمدغه سپک لمو نځ کونکی
لپاره به دی دُنیاکی په پنځلس عذابوباندی اخته کوی.یوخوئی دادی چی په
رزق ئی الله نه مروی اوبل داچی مرکیږی کلمه ئی پرخوله نه راځی.چی دا
ډیرد افسوس اودغم ځای دی.(مترجم)

## ﴿داامام ذمه واری اومسئولیت﴾

عن عَبْدُاللهِ بْنِ عُمَرَرَضِیَ اللهُ تَعَالٰی عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ مَنْ اَمَّ قَوْمًافَلْيَتَّقِ اللهَ وَلْيَعْلَمْ اَنَّهٗ ضَامِنٌ مَسْئُوْلٌ لِمَاضَمِنَ وَاِنْ اَحْسَنَ كَانَ لَهٗ مِنَ الْاَجْرِمَنْ صَلّٰى خَلْفَهٗ مِنْ غَيْرِ اَنْ يُنْقَصَ مِنْ اُجُوْرِهِمْ شَيْءٌ وَمَاكَانَ مِنْ نَقْصٍ فَهُوَ عَلَيْهِ (رواه الطبرانی فی الاوسط(کنزالعمال)﴾



ترجمه: دحضرت عبدالله بن عُمررضی الله تعالٰی عنه څخه روایت دی چی
رسول الله ﷺ وفرمایل چی کم سړی چی دجمعی امامت کوی نو دهغه لپاره
پکارده چی دی د الله پاک څخه ویره یری اودایقین دی ولری چی دی(د
مقتدیانو دلمانځه هم)ضامن او ذمه داردی.اوده څخه به ددغه ضمانت او ذمه
واری پوښتنه کول کیږی. که ده په ښه طریقه لمو نځ ورکړی ؤونو کم مقتدیان
چی پسی ولاړدی دهغوی دمجموعی ثواب په اندازه هغومره ثواب به وده ته
هم ورکول کیږی.حال داچی دمقتدیانوپه ثواب کی به هیڅ کمی نه
راځی.اوکه چیری په لمانځه کی یوڅه کمی اویاڅه نقصان پاته سی نوددی
پیتی به ټول دامام پرغاړه وی اوداټول بوج به پرامام راپریوځی.

## ﴿دمقتدیانورعایت﴾

عَنْ اَبِیْ هُرَيْرَةَ رَضِیَ اللهُ تَعَالٰی عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ اِذَاصَلّٰی اَحَدُكُمْ لِلنَّاسِ فَلْيُخَفِّفْ فَاِنَّ فِيْهِمُ السَّقِيْمَ وَالضَّعِيْفَ وَالْكَبِيْرَوَاِذَاصَلّٰی اَحَدُكُمْ لِنَفْسِهٖ فَلْيُطَوِّلْ مَاشَاءَ (متفق علیه)

ترجمه: دحضرت ابوهریرة رضی الله تعالٰی عنه څخه روایت دی چی نبی
کریم ﷺ وفرمایل چی کله په تاسوکی یوڅوک دخلقوامام سی اولمو نځ
ورکوی نوده له پکاردی چی لمو نځ مختصرو کړی (یعنی ډیردی نه اُوږدوی)
ځکه چی په مقتدیانوکی ناجوړه ،کمزوری اوسپین ږیری وی(چی ددوی

لپاره اُوږد لمونځ باعث دزحمت ګرځی)او کله چی په تاسو کی یو څوک یوازی لمونځ کوی نو خومره چی ئی خوښه وی هغومره دی ئی اُوږد کړی.

**تشریح**: په صحابه کرامو‌ؓ کی کم چاچی په خپلو قبیلو یاخلقو کی دجمعی یانور لمنځونه ورکول نود خپل عبادتی شوق اوذوق مطابق به ئی اُوږدلمونځ ورکاوی.نود دی په سبب به کمزوری ، ستړی ستومانه خلقوته کله کله ډیر تکلیف ورسیدی نوددی کارداصلاح لپاره رسول الله ﷺ په مختلفومواقعو کی دارقم هدایت وفرمائی.دهغه منشاء ددی نه داوه چی امام له پکاردی چی هغه ددی هدایت لحاظ وساتی چی په مقتدیانو کی کله کله ناجوړه کمزوری یاسپین ږیری هم وی نوپکارده چی لمونځ دی ډیرنه اُوږدی.بلکه دسُنت خیال دی هم وساتی اودمقتدیانوخیال هم. لنډاو مختصر سورتونه دی وای اوپه رکوع اوسجده کی دی تسبیحات تردری واره زیات نه وای. د نبی کریم ﷺ لمونځ یومیانه لمونځ ؤ وبایدچی دهغه پیروی وسی

## ﴿مقتدیانو ته لارښوونه﴾

عَنْ اَبِی هُرَیْرَةَ رَضِیَ اللّٰهُ تَعَالٰی عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ ﷺ لَاتُبَادِرُوْا الْاِمَامَ اِذَا کَبَّرَ فَکَبِّرُوْا وَاِذَا قَالَ وَلَا الضَّآلِّیْنَ فَقُوْلُوْا اٰمِیْنَ وَاِذَا رَکَعَ فَارْکَعُوْا وَاِذَا قَالَ سَمِعَ اللّٰهُ لِمَنْ حَمِدَهٗ فَقُوْلُوْا رَبَّنَالَکَ الْحَمْدُ **(رواه بخاری)**

**ترجمه**: دحضرت ابوهریرة رضی الله تعالٰی عنه څخه روایت دی چی نبی



کریم صلی الله علیه وسلم وفرمایل چی ای خلقو دامام څخه مه مخته کیږی (بلکه دامام اتباع او پیروی دی وسی) کله چی امام اَللّٰهُ اَکْبَرُ ووائی نو تاسی هم اللّٰهُ اَکْبَرُ ووائی او کله چی امام وَلَاالضَّآلِّیْنَ ووائی نوتاسی اٰمین ووائی او کله چی دی رکوع و کړی نوتاسوهم رکوع و کړی او کله چی امام سَمِعَ اللّٰهُ لِمَنْ حَمِدَهٗ ووائی نوتاسی رَبَّنَالَکَ الْحَمْدُ ووائی.

**تشریح**: دامام درمخه کیدو مطلب دادی اوپه ده پسی داقتداء مقصدهم دادی چی څه ډول هغه کوی هغسی به مقتدیان هم کوی. کله چی چااقتداء وکړه په یوه امام پسی هلته بیادمقتدی خوښه نه چلیږی.یعنی په ټولوارکانو او اجزاؤ کی مقتدیانوله پکاردی چی په امام پسی وی په هرشی کی.په مسندبزار کی هم دابوهریرة رضی الله تعالٰی عنه څخه روایت سوی دی اووائی چی کم سړی چی دامام څخه دمخه په رکوع یاپه سجده کی سرپورته کوی یا کښته کیږی.نودهغه تندی دشیطان په لاس کی وی اوشیطان په ده باندی داسی کوی اودارقم بل حدیث شریف دصحیح بخاری او مسلم شریف کی د رسول الله ﷺ څخه روایت کړی دی اووائی چی حضور ﷺ وفرمایل چی کم څوک چی په سجده یاپه رکوع کی دامام څخه دمخه کښته کیږی یا پورته کیږی نوهغه له داویره پکارده چی داسی نسی چی دده سردخره سی.

**(معارف الحدیث ص ۳۲۳، جلد ۳)**

**خلاصه**: په مستخلص کی یوه قیصه راغلی ده وائی چی یوه عالم داحدیث

شریف واوریدی خوده ته په دغه خبره کی شک پیداسوچی آیادابه په حقیقت کی داسی وسی او که نه.نوئی په قصده دامام څخه دمخه په رکوع او په سُجده کی ولاړی.الله پاک په خپل کامل قدرت سره دهغه سردخره کړی.دغه عالم به چی کله وطالبانوته سبق وائی نوبه ئی په محراب کی پرده خړولی وه اودپَرُدِی دشالخوابه ئی سبق ورته وائی.یوه شاګرد ئی ډیر عمرورسره تیر کړی خویه دی وه پوهیدی چی زمونږاُستاذولی مخ نه ښکاره کوی.بیائی یووخت پوښتنه څنی وکړه چی ته ولی مخ نه ښکاره کوی.هغه عالم ورته وویل چی پر پرده څه ئی کوی.خو هغه شاګردئی ټینګاروکړی چی خامخابه حال راته وائی نوبیاده دا قیصه ورته وکړه.الله پاک دی مونږ وساتی دداسی امتحان څخه.(مترجم)

## ﴿دامام صفتونه﴾

کم څوک چی دا اهمه فریضه ترسره کوی په هغه کی دغه لاندی صفتونه یاخوبیانی بایلموجودی وی.(۱)کم څوک چی امامت کول غواړی باید خواهش ئی ونلری.خوداپه دی صورت کی چی ددی منصب لپاره بل سړی موجودوی.(که چیری بل اهل سړی موجودنه وی نوبیاخواهش کول پکار دی)(۲)که دده.څخه افضل سړی د امامت لپاره موجودنه وُونوبیادی هم دی پخپله نه ترمخه کیږی.(۳)دنبی کریم ﷺ ارشاددی چی خلقوته یو سړی



دجمعی لمونځ ورکوی لیکن په ده پسی داسی یو څوک ولاړوی چی تر ده بهتره اوغوره وی نوداسی خلق به همیشه په انحطاط کی وی.حضرت عمر فاروق رضی الله تعالیٰ عنه فرمائی چی که زما شټه پری سی دابه ښه وی چی زه دداسی جَمْعِيُ امامت و کړم په کم کی چی حضرت ابوبکرالصدیق رضی الله تعالیٰ عنه موجودوی.(۴)امام به قاری دقرآن وی.ددین په خبروبه پوهیږی.په سُنت به ښه خبروی.په حدیث شریف کی راځی چی "تاسوخپله دینی معامله خپلو فقهاؤته وروسپاری اوقاریان خپل امامان مقرر کړی" اوپه بل حدیث شریف کی رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمائی چی ستاسو امامت دی هغه خلق و کړی چی ستاسو څخه بهتره وی ولی چی دوی دالله په دربار کی ستاسونمائندګان دی.

حضور ﷺ داتخصیص په دی وجه فرمایلی دی چی دینداره امام او دعلم او فضل لرونکی والاالله پیژنی اودهغه څخه ویریږی.(څکه خوالله جل شانه فرمائی "اِنَّمَا یَخْشَ اللّٰهَ مِنْ عِبَادِهِ الْعُلَمٰٓؤُا"بی له شکه دالله په بندګانو کی علماء دالله څخه بیریږی) دوی پخپل لمانځه اودمقتدیانو په لمانځه پوهیږی اوکمی خبری چی لمونځ خرابه وی دهغه خبروڅخه هغه ځان ساتی.

دقاری قرآن څخه مراددحضور ﷺ بی عمله قاری ندی بلکه باعمله حافظ او قاری دی.په حدیث شریف کی راځی چی ددی قرأت زیات

حقدارهغه څوک دی چې په دی باندی عمل کوی.او که چیری دی په دی باندی عمل نه کوی اونه ئی تلاوت کوی خواه که هغه حافظ وی او که نه، په قرآن باندی عمل نکوی اونه دالله د حلودوپرواه کوی اونه ددی دممنوعاتو څخه احترازاواجتناب کوی نوالله تعالیٰ د داسی سړی هیڅ پرواه نلری.نو داسی سړی دڅه عزت اواحترام لائق ندی.(۵)امام دی خپله خوله دخلقو د غیبت کولواودهغوی دعیبو دلټولو څخه بنده کړی.نوروخلقوته دی دنیکی حکم ورکوی اوپخپله دی هم عمل پرکوی نورخلق دی دبدلو څخه بند وی اوپه خپله دی هم بندلسی.نیکی اودنیکو خلقوسره دی مینه لری.دبدی اودبدلو خلقو څخه دی نفرت کوی دلمنځوپه وختوبه خبروی اود وختوبه ډیرزیات پام کوی.برداشت اوصبرلرونکی بایلوی.د جاهل سره په ورین تندی باندی پیش راځی دنفس دخواهشاتو څخه دی ځان وساتی.

## ﴿امام ته لاربنوونه﴾

امام ته پکاری دی چې بی کاره خبری دی نکوی.امام به دعامیانو په مجلس کی بلاضرورت نه کښیني.خپل ځان دی دانبیاؤ کرامو استازی بولی اودنبی کریم ﷺ خلیفه.دلمانځه دار کانودی زیات خیال ساتی (سپک لمونځ دی نکوی.امام به په محله یاپه کلی دماره سړی په دی وجه چې هغه موردی چاپلوسی دی نکوی اوندی طمع اواُمیدورته کوی.چی دادده د



منصب خلاف خبره ده.د امام کالی به صاف اوستره وی.غروراوتکبردی نکوی.دحکاموسره دی نه کښیني.دخپلو مقتدیانو کره دی بی اجازی نه ورځی.اودستر کوحفاظت به کوی اودچاپرده دی نه پورته کوی.امام به په داسی تجارت او یا کاروبارکی نه اخته کیږی په کم چې دربایاسُوُد اونورو خبائثو امکان وی.په اوس زمانه کی دی دبینک ملازمت نکوی.دخلقود امانتوبه خیال ساتی.مبتدع به نه وی اوچاپلوسی به نکوی.اود ځان څخه به فتوی نه ورکوی)

## ﴿دامام لپاره نورشرطونه﴾

دامام لپاره لازمی ده چې هغه دی دفتنی د پیداکولو کوشش نکوی او نه دی وفتنی ته تقویت ورکوی.بلکه دباطل پرستوخلاف دی داهل حق سره دی کمک کوی.هغه که په لاس باندی ممکن وی او که په ژبه باندی. که دا امکانات نه ؤونوبیا دی په زړه کی ددوی دکومک غوښتونکې وی.دالله په معامله کی دی دبدلویونکی د بدویلوخیال نکوی.خپل تعریف دی نه خوښوی .اونه دی خپل ملمت بدګڼري.په دُعا کی دی ځان نه مختص کوی.بلکه کله چې دُعاکوی نود ځان لپاره اودعامو خلقولپاره دی عامه دُعاکوی. که یوازی په تنهائی کی یو ځای ځان ته دُعاکوی نوبیا که چیری یوازی وځان ته دُعاو کړی نوبیاپرواه نکوی.خوښه خبره داده چې دی بایلهمیشه د عامو

خلقوخیرخواه اُوسی په هرشی کی.

داهل علم نه ماسوی دی چاته پربل چاترجیح نه ورکوی.درسول الله ﷺ ارشادگرامی دی چی "په لمانځه کی دی زماسره نژدی اهل علم اود فهم اوادراک کسان ودریږی"نوداسی دی دامام نه وروسته یعنی په اول صف کی داسی خلق ودریږی.داسی نه چی دولت مندخلق و ځان ته نژدی کوی اوغریب کسان دځان څخه لری ساتی.دداسی خلقو امامت دی نکوی چی هغوی دده امامت نه خوښوی. کـه په مقتدیانوکی یو څه خلق دده امامت خوښوی اویوڅه ئی نه خوښوی.نو که دنه خوښونکوتعدادزیات وی نوامام لره پکـارده چی محراب پریږدی.(یعنی لمونځ دی نـه ورکوی)خوشرط دادی چی دمقتدیانو نا خوښي بـه دده دعلم ، تقوی اوپوهی دکمی له وجهی وی.او یـابل شرعی نقص پکښې وی. کـه چیری دمقتدیانوناخوښي ددوی د جهالت، بـاطل پرستی ، فرقه وارانه تعصب،قومی تعصب(چی داقومی تعصب په پښتنو کی ډیـرزیـات ستـه) اونـفسـانی خواهشاتوپه وجه سره وی نوبیادی ددوی د ناخوښي پرواه نکوی.او نه دی ددوی په وجه لمو نځ پریږدی.او که چیری په خـلقوکی دده په سبب فتنه اوفسادپیداکیدی نوپکارده چی دمصلحت نه کار واخلی اوکناره کش سی. امام لره پکارده چی دتهمت له ځایه لری وګرځی. دفسادیانو سردا رانواو نوروغیر اخلاقی خلقوسره دی تعلق اومحبت نه ساتی



(البته که چیری د دوی د اصلاح لپاره وی بیاپرواه نلری) که چیری خلق دی آزاروی نـودی صبـر کـوی اوددی پـه عـوض کـی دی دهغوی سره د اخلاقومظاهره کوی.دهغوی سره دی مینه و کړی اود هغوی خیرخواهی دی وغواړی.

## ﴿دامامت دحصول لپاره جنګ کول﴾

دامامت دحصول لپاره جنګ کول ندی پکار. که بل څوک دابار د امامت پورته کول غواړی نـودهغه سره دی په دی معامله کی جنګ نکوی.د اکابرواودسلف صالحینوپه باره کی داسی منقول دی چی هغوی به دامام جوړ یدلو څخه حتـی الامـکـان انکارر کاوی.اوپه خپل ځـای ئـی داسی کسان ته د امـامـت وظیفـه په لاس ورکول کم چی به بزرګی او تـقوی کی ددوی سره بـرابـرنه ؤو.ددی طرزعمل څخه ددوی دادعـوه وه چـی په خپل د دوئ بار سپک سـی اودوئ به ددی خبری څخه بیـریـدل چـی داسی نه چی د دوئ څخه په امامت کی څه قصوراو کوتاهي ونسی.(غنية الطالبين صفحه ۸۶۵)

## ﴿دامامت اُجرت(مزدوری)﴾

دامـامـت داُجـرت یـامزدوری په باره کی هم دابتداء څخه اختلافی مسئله رارو انه ده.دامام شافعي امام احمدبن حنبل رحمهماالله تعالٰی علیهمااود یوی ډلی دامذهب اورأیه ده چی پریو داسی طاعت چی کم داجیرپه ذمه متعین

نه وی عقداجاره ئی منعقدکول او اُجرت اخیستل اوور کول جائزدی.لکه
قرآن مجیدتعلیم،اذان، امامت اونور دا سی.

امام اعظم ابوحنیفه،زهری اوقاضی شریح رحمهم الله تعالی علیهم
اویوډله د دی خبری قائل دی چی په اطاعت باندی اُجرت(اخیستل)ناجائز
دی.

دمتقدمینو احنافو دامسلک دی چی په طاعت باندی اُجرت
مزدوری اخیستل او ورکول ناجائزه دی اوقدماء حنفین هم ددی سره موافق
فتوی ور کوی .او عمل هم پر کوی.

علم دین ښونکوته ،مؤذنینوته،امامانوته به پخوا دبیت المال څخه
وظائف اوتنخواه ورکول کیدل او ددی خلقوبه ډیرپه آرام اوفارغه ز ړه سره
خپل کارسرته رسولو. څه وخت وروسته چی اسلامی مملکت پاته نسو
بعضی مسلمان باچهانو چی دبیت المال په مصارفو کی دشرعی حلودو څخه
تجاوزو کړی نودعلماؤ، مؤذنینواو أئمو وظائف اوتنخواوی ئی بندی کړی.او
دین په تعلیم ورکولو کی یاپه اذان اواقامت او امامت کی چی دوی ته کم قلبی
فراغت حاصل ؤوهغه ختم سونوچونکه داخلق هم آخر انسانان وه اوضرورتو
نه ئی درلودل نوپه دی وجه دوی مجبوراًدحال دحاصلولو ذرائعوته متوجه
سول چی ددی په ذریعه دخپل ځان او داولادادومتعلقینو وخت تیرسی.



ذرائع معاش چونکه په مختلف قِسمُووی.چاڅه طریقه اختیار کړه
اوچاڅه،چاتجارت، چازراعت چاملازمت ،چاصنعت اوچادستکاری اختیار
کړه.داسی ضرورتونه هم کم وبیش مختلف ؤونوپه دی وجه د شپی او
ورځی په ۲۴ساعتو کی یوه غټه حصه په کسب معاش کښې دتیرولوباوجود
هم دبعضی کسانوضروریات پوره نه سول.ددی حالاتوپه وجه مجبوراً ډیرو
علماؤ، مؤذنینو اوامامانو ددینی تعلیم یااذان اوامامت خلمت بالالتزام پوره
نه کړای سوا و بالآخره ئی داخلمت پریښووی.

خو دتعلیم دپریښوو څخه ئی دانقصان وسوچی دعلمِ دین سلسله ئی
پری کړه.ځکه چی هر کله سبق ښوولو والاته دضروریات معاش دمشغولتیاپه
وجه دومره فرصت نه ؤوچی طالبانوته ئی درس ور کړی وی.نوبیاددین د
علوموژوندا وبقاءڅه صورت پاته سو؟

داذان دپریښولو څخه داتاوان ورسیدی چی دلمانځه دوختو دانضباط
چی کم معین صورت دمؤذنی سره کیدی سوهغه درهم برهم سو.چونکه په
دی زمانه کی په غټو غټوښارونو کښې بلکه په بعضو کلو کښې اکثرغریب
مسلمانان په کارخانواو کیمپونو کی اوپه مِلونو کی په مزدوری کار کوی اود
خپلو افسرانوخوشامندی کوی نو هله د جمعی اجازت حاصلوی.داسی خلقو
ته ددی خبری زیات ضرورت دی چی د اذان اود لمونځ وخت معین وی

چې د هغې موافق دوی د کارخانو شخه په صحیح وخت راځي اوپه جمعه لمونځ وکړی اوبیاخپل کارله ځی کـه د اذان اودجمعي وختونه معین نه وی نودوئ یاخوبه جُمُعه پریږدی اویابه په خپل کارکی ډیروخت غیرحاضروی نو افسران به ئی ناراضه کیږی اوخپل دمعاش ذریعه به ئی دلاسه ووځی. که امام معین نـه وی نـودجُمُعی انتظام سم نه پاته کیږی اوپه ښه انـضباط اونظم سره لمونځ نسـی کیـدای.نومتأخرینوحنفی فقهاؤ ددی ضرورتِ شرعی په وجه د حضـرت امام شا فعی رحمه الله تعالٰی علیه دقول مطابق دافتوی ور کړه چی د ضرورت موافق په طاعت باندی اُجرت یا مزدوری اخیستل جائزدی.دوئ د قرآن ،حدیث اود فقهی په تعلیم اوپه اذان اواقامت باندی دأُجرت یا مزدوری اخیستلودجواز تصریح ور کړه.ځکه چی دا داسی شیان دی چی که داباقی پاته سی نو اسلامی حقیقت باقی پاته کیدل به گران وی (خدمات اومعاوضه صفحه: ۱۷۲)

## دحاکم وخت شخه اجازه ضروری ده

که په حاضرینو کی حاکم وخت موجودوی نودهغه داجازی پرته دی امامت ته دی نه ورمخته کیږی.

## امام اومحراب

امام ته پکارده چی کله دلمانځه لپاره ورمخه سی نو ټول ځان دی په محراب کی نه دروی.یعنی چی ټول پـه محراب کی دننه سی.اوپه ده پسی



ولاړ کسانو شخه پټ وی.بلـکه ده لره پکار ده چی دمحراب نه لږ د باندی ودریږی.یعنی دامام پوندی دباندی وی.امام لره پکارده چی دسلام گرځولو شخه وروسته دی ډیرساعت دی په محراب کی نه پاته کیږی بلکه ده لره د محرابه شخه وتـل پکـاردی.اویا دی د محراب په یوه خوا کی ودریږی او سُنت دی اداکړی.دحضرت مغیرة بن شعبة رضی الله تعالٰی عنه شخه روایت دی چی نبی کریم ﷺ وفرمایل چی امام په کم ځای کی ودریږی اوجُمُعه ورکړی په هغه ځای کی دی بیانفل یاسنت نکوی.البته مقتدی ته جائزدی چی پـه خپل ځای کی ودریږی نـفل یاسُنت و کړی.اوکـه وغواړی نو ځای هم بدلولای سی.

## دقرأت شخه اول او وروسته سکوت کول

امام له پکاردی چی دوه واره وقفه وکړی.یووار دلمانځه په اول کی اودوئم وار دقرأت شخه وروسته درکوع شخه ترمخه.په دی مابین کی به ده تـه دساه اخیستلو وخـت ورملاؤسی.اوپه دی قرأت کی چی کم جوش پیدا سوی دی هغه به په سکون اوآرام بدل سی.دقرأت پرله پسی والی به درکوع په تکبیرهم نه کیږی.دحضرت سمرة بن جندبؓ شخه چی کم روایت سوی دی په هغه حدیث شریف کی درسول الله ﷺ دا معمول نقل سوی دی.

## په تسبیح ویولو کی دی چابکی نکوی

امام چې کله رکوع له ولاړېږي نو دري واره دې تسبيح ووائي.په تسبيح ويلو کې دې چابکي نکوي.بلکه ډېر په مزه دې الفاظ اداکوي.اوپرله پسې دې وائي.ځکه که چيرې امام تسبيح چابک ووائي نومقتدي به ئې ونه وائي.دغه رقم امام لره پکار ده چې کم وخت درکوع څخه سر راپورته کوي سَمِعَ اللّٰهُ لِمَنْ حَمِدَهُ دې ووائي سم دې ودريږي اوچابکي دې نکوي. ترڅو چې مقتدي رَبَّنَالَکَ الْحَمْدُ ووائي.حضرت انس بن مالک رضي الله تعالیٰ عنه وفرمايل چې رسول الله ﷺ به د رکوع څخه خپل سر مبارک راپورته کړي نو دومره وخت به ئې د سجدې څخه ترمخه ځنډ کاوي چې چابه ويل چې ګواکې سجدې له تګ څنې هيرسو.دغه رقم به ئې په سجده کې او دواړو سجدلو په مابين کې ځنډ کاوي. او دهغه چاهيڅ خيال مکوي څوک چې وائي چې په دې صورت کې به مقتدي د امام څخه دمخه بعض ارکان ادا کړي اوکه يوړکن مقدم کې نو لمونځ به ئې فاسد سي. کله چې مقتديان دامام وځنلېته وګوري نوپوه به سي چې امام هميشه داسې ځنډ کوي. اودواړو سُجلوپه مابين کې وقفه کول دامام عادت دی نو دوئ به هم ځنډ کوي.اود امام څخه به دمخه سُجده نکوي. (غنية صفحه ٨٦٩)

## امام دې دلمانځه څخه دمخه مقتديانو ته خبرورکړي

امام ته پکارده چې دلمانځه څخه دمخه مقتديان خبر کړي چې ګوري



تاسې په رکن کې هم زما څخه ترمخه نسې.بلکه ماوړکن اداکولو ته پريږدي اوبيا زما اقتداء وکړئ. که تاسې زما څخه دمخه ارکان ادا کړئ نو الله تعالیٰ به ناراضه کړئ اوخپل لمنځونه به هم خراب کړئ.(اودسخت وعيدسره به هم مخامخ سئ)

امام ته پکارده چې خپلو مقتديانو ته نصيحت کوي اودوئ پوهوي چې په رکوع اوسُجده اونورو ارکانو کې دتلوارې څخه کاروانخلي.اولمونځ ښه سم په طريقه باندې اداکړي.ځکه چې امام ددوئ ساتونکی دی.دقيامت په ورځ به دامام څخه دخلقو په باره کې پوښتنه کول کيږي.امام لره پکارده چې خپل لمونځ په ښه طريقه باندې اداء کړي. که چيرې کوتاهي کې وکړي نو لکه څرنګه چې به دده مقتديانو ته د ګناؤ سزا ملاويږي هم هغه رقم به امام ته هم ددې کوتاهي اوغفلت په وجه ددې خلقو د لمنځونو دخرابولو سزا ور کول سي.(غنية الطالبين صفحه نمبر ٨٧١)

## دامام په زړه اوپه ژبه نيت کول

امام ته پکاردي چې ترڅوئې دزړه نيت نه وي کړي ترهغې دې لمونځ نه شروع کوي اونه دې تکبير تحريمه وائي. که چيرې په ژبه هم دنيت الفاظ اداکړي نو ښه خبره ده.امام ته پکارده چې اول راسته خواته اوبيا چپه خوا ته وګوري او صفونه سم کړي او مقتديانو ته ووائي چې سم ودريږي.الله دې

پر تاسو باندې رحمت نازل کړي سم ودرېږي الله پاک دې ستاسې څخه راضي سي. دمابين خالي ځايونو ډکولو حکم دې ورکړي اودا دې ورته ووائي چې اوږه په اوږه سره و درېږي او اوږې سره برابرې کړي. دصفونو د کوږو الي څخه په لمانځه کې نقص پيدا کيږي. شيطان دخلقو سره په صفونو کې ور ننوزي اوهلته ورسره درېږي. پـه حـديث شريف کې راځي رسول الله ﷺ فرمائي "چې صفونه سموي او اوږه دې داوږې سره برابره وي اوپه مابين کې خالي ځايونه مه پرېږدي چې د مرغومې دبچې په شان شيطان ستاسو په مابين کې ونه درېږي."

## ﴿دحضور صلى الله عليه وسلم طريقه﴾

رسول الله صلى الله عليه وسلم چې به کله پر لمانځه درېدى نو دالله اکبر وئيلو څخه ترمخه به ئې خلقو ته داوږو برابريلو حکم ورکاوه. او فرمائيل به ئې چې څوک دې مخ پاشاته نه کيږي داسې نه چې ستاسو په مابين کې اختلاف پيداسي. رسول الله صلى الله عليه وسلم يوه ورځ پـه لمانځه کې وکتل چې ديوه سړي سينه دصف څخه وتلې وه هغه ته رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمائيل چې تاسو ته پکار ده چې خپلې اوږې برابرې کړې کنې الله تعالى به ستاسو په زړونو کې بې اتفاقي واچوي.

دبخاري شريفي اودمسلم شريف متفق عليه روايت دى چې سالم بن



جوړ رضي الله عنـه دحضرت نعمان بن بشير رضي الله تعالى څخه واوريدل هغوى وائي چې رسول الله ﷺ به فرمايل چې خپل صفونه سيده او ساتئ کنې الله تعالى به ستاسو په مخونو کښې فرق پيدا کړي. په يو بل حديث شريف کې حضرت قتادة رضي الله تعالى عنه دحضرت انس بن مالک رضي الله تعالى عنه څخه روايت کړي چې رسول الله ﷺ وفرمائيل "صفونه سيده ساتل د لمانځه په تکميل کې شامل دي (يعني دلمانځه دتکميل يوه حيصه ده)

## ﴿دصحابه کرامو رضى الله تعالى عنهم معمول﴾

امير المؤمنين حضرت عمربن خطاب رضي الله تعالى عنه يو سړى صرف دصفونو د سيده کولو لپاره مقرر کړى ؤو. ترڅو چې به هغه وامير المؤمنين ته دصفونو د سيده کيلو خبر نه ؤور کړې تـر هغو به هغه تکبير تحريمه نه وائي. دحضرت عمربن عبدالعزيز رحمه الله عليه هم دامعمول ؤو. په يوه روايت کې راغلي دي چې حضرت بلال رضي الله تعالى عنه (د رسول الله صلى الله عليه وسلم مؤذن) به صفونه سمول او خلق به ئې په کوړو پرپونو باندې وهل. چې خلق ښه هوار او سيده ودرېږي. بعضي علماء فرمائي چې ددې روايت څخه دا ښکاره کيږي چې حضرت بلال رضي الله تعالى عنه به داخدمت درسول الله صلى الله عليه وسلم په ژوندمبارک کې داقامت په وخت د لمانځه دشروع کيلو څخه ترمخه کاوه. ځکه چې حضرت بلال رضي الله تعالى عنه ديوه

امام لپاره هم د رسول الله صلی الله علیه وسلم څخه وروسته اذان نه ؤو کړی.
صرف یو ورځ چې کله حضرت ابوبکر الصدیق دشام دملک څخه بیرته
راوګرځیدی نو حضرت ابوبکر الصدیق رضی الله تعالیٰ عنه اونورو صحابه
کرامو رضی الله تعالیٰ عنهم اجمعین دعهدنبوی دیاداودشوق دتازه کولو لپاره د
حضرت بلال رضی الله تعالیٰ عنه څخه درخواست و کړی چې هغه یو اذان
و کړی. کله چې حضرت بلال رضی الله تعالیٰ عنه اَشْهَدُاَنَّ مُحَمَّدًرَّسُوْلُ اللهِ ته
راورسیدی نو دریدی اوپرمخ ئې ونه وویل. دحضرت مُحمد ﷺ په محبت
اوعشق کې بې هو ښه سو اوپرمخکه راولویدی. دمدینې په انصارو او مهاجرو
کې دنبی کریم ﷺ دفراقت غم راتازه سو. تردې چې دنبی کریم ﷺ د
محبت په وجه سره ښځې هم دپردې څخه دباندې راووتې. غرض داچې د
دې روایت څخه ثابته سوه چې حضرت بلال رضی الله تعالیٰ عنه خلق ته
پونلو په دُروباندې وهل درسول الله صلی الله علیه وسلم په زمانه کې ؤو.
(غنیة صفحه ۸۶۹)

## داامام دمقرر کیدو حق

(سوال) که دیوجماعت اکثر مقتدیان او دمحلې خلق او د کمیټې ممبران ویا
پیش امام صاحب دخپلو خلماتو څخه رُخصت کړی اوبیا امام ئې دهغه پر
ځای باندې ودراوی نو په داسې صورت کې به داکثریت درائې احترام کیږی



او که د اقلیت ضدبه منل کیږی؟

(جواب): که دواړه امامان په علم وفضل اوتقوی کښې برابروی نو په قوم
کې به د اهل اصلاح والادا اکثریت اعتباربه تسلیمیږی. (احسن الفتاوی ۳/۲۹۴
بحواله رد المحتار ۱/۵۲۲)

داامام دتقرر کولو حق دمسجدلوبانی ته حاصل دی. اوبیادهغه وخاندان
ته (دهغه اولادورو ته اونوروته) بیاد محلې وخلقوته دااختیار حاصل دی. خو د
امام اهلیت شرط دی. (فتاوی محمودیه ۲/۸۵ بحواله انتباه ص: ۱۴۱)
که بانی یامتولی یوغیرمستحقه سړی مقرر کول غواړي او دمسجداو محلې
خلق لائق سړی نوبیا د اهل محله اومسجدلوالا حق راجح دی. (فتاوای قاضی
خان هندیه ۳/۳۳۸)

## آیاپه امامت کې وراثت سته؟

(سوال ۱): یو خطیب صاحب یو ځای مقررسوا وپه خپل ژوندئې خپل وراره
خپل نائب وکرځاوی او وروړئې هم ؤ واوده پنځه کاله ښه په دیانت داری
سره خپله وظیفه تر سره کړه اوبیا خطیب صاحب وفات سو نو آیادهغه اولاد
خپل نائب مقررولی سی؟

(سوال ۲): داامام صاحب وروړسته اوده خپل وراره مقرر کړی قوم اود
جَمْعی خلقو د هغه منظوری ور کړه او اوس ئې وروردعویدارسو نو دهغه دعوی

صحیح ده که نه؟

﴿الجواب﴾: کم شوک چی مخ کی خطیب صاحب خپل نائب مقرر کړی ؤ نو هم هغه به امام وی ځکه چی په حقیقت کی دامام دمقرر کولو حق د مسجدو باني اودهغه اولاد ته حاصل دی اوددوی شخه وروسته بیااهل محلی والاته. نو قوم چی شوک امام مقرر کړی هغه به امام تسلیمیږی. نو بس اوس به دچادعوه صحیح نه وی نه داولاداونه د وروړ ځکه چی په امامت کی وراثت نه جاري کیږی. (فتاوٰی دار العلوم ۳/۹۵ بحواله ردالمختار ۱/۳۷۳ باب الاذان)

په امامت کی وراثت نسته بلکه دامام دمقرر کولو حق اول دمسجد وباني ته حاصل دی بیادهغه اولاد ته اوبیادهغه وقریبانو ته. او دهغوی شخه وروسته ولمونځ گزارو ته اودمحلي وخلقوته. که چیری دمسجد باني یو داسی سړی مقرر کړی چی هغه امامت صلاحیت نه درلودی اولمونځ گزارو د ده شخه یو بل ښه لائق امام مقرر کړی نو هم هغه به امام مقرروی کم شوک چی لمونځ گزارو مقرر کړی دی.

دردالمختار حنفی مذهب فقهی کتاب په دریم جلدصفحه نمبر ۵۷۳ کی دی چی که امام بدعتی سو اودمسجدلمونځ گزار دده شخه خوشحاله نه ؤ نو ددی خرابی په وجه سره هغه معزول کیدای سی او بل ښه لائق او د لمانځه په مسائلو باندی پوه امام مقرر کول پکاردی. (فتاوٰی دار العلوم ۳/۸۵)



## ﴿که دامام په مقرر کولو کی اختلاف پیداسی﴾

﴿سوال﴾: دمحلي په مسجد کی دوه کسان وائی چی کم امام مو نږ مقرر کړی دی هم هغه به وی. اودمحلي کسان بیاوائی چی کم شوک چی مونږ مقرر کړو هم هغه به وی. د دی اختلاف شرعاً شه حکم دی؟

﴿جواب﴾: کم امام چی اهل محله مقرر کړی هم هغه به امام وی (فتاوٰی دار العلوم ۳/ ۷۹ بحواله ردالمختار ۱/۳۲ صباب الامامت) دمحلي خلق دیوه امام په مقرری کی سره دوی ډلی سی نو چی دکمی ډلی تجویزسوی امام ډیر لائق وی هم هغه به راجح وی او که ددواړو ډلو امام لائق وی نو دغتي ډلی امام به راجح وی. (فتاوٰی عالمگریه ۱/۸۸)

## ﴿عدالت/محکمه امام مقررولی شی؟﴾

﴿سوال﴾: آیاعدالت یو داسی امام په زوره مقرره ولی سی چی په هغه باندی قوم ناراضه وی په دی حکم کی عدالت/محکمی ته شه شرعی حق سته؟

﴿جواب﴾: عدالت ته داحق حاصل نه دی ځکه چی ددی نفع اونقصان قوم ته دی نوپه دی وجه دی عدالت یامحکمه دخلقو دخوښي شخه پرته شوک نه امام کوی او محکمی یاعدالت ته په دی کی هیڅ حق نسته. (فتاوٰی دار العلوم ۳/۹۵ بحواله ردالمختار ۱/۳۲ صباب الامامت)



## دامامت دعوی او دمقتدیانو انکار

**سوال**: که دیوی خانقاه سجاده بحیثیت سجّاده نشین که دامامت دعوی وکړی او باقی وارثان کم چی دده دورورې خلق دی او مقتدیان ئی دده امامت منظور نه کړی نو د امامت دعوی صحیح ده او که نه؟

**جواب**: دفقهي په کتابو کی راځی چی دمسجدبانی او واقف ته دامام په مقررولو کی ډیر حق دی او که هغه نه وی نو دهغه او لاد او رشته داران ډیر حقدار دی. ددی څخه ورو وسته بیادمحلی دخلقو زیات حق دی. چی امام مقرر کړی او هغه به امام وی. نو که د خانقاه یا سجّاده نشین او لاد دواقفو (یعنی دمسجدوقف کونکی) څخه وی نو بیا بی له شکه هغه ته دامام مقرره ولو حق حاصل دی خو نور خپلو خپلوانو دواقف هم داحق سته. سجّا ده نشین ته څه ترجیح او خصوصیت نسته. (فتاوی دار العلوم ۲/۹۵ بحواله ردالمختار ۱/ ۳۳ باب الامامت)

## که دامام دمقررولو گنجائش نه وی نو بیا څه حکم دی؟

**سوال**: که په یو ښار کی مسجدونه ډیروی او لمونځ گزار کم وی او په هر مسجد کی دامام دمقرره ولو وس او طاقت نه وی نو که دنږدی نږدی محلو خلق سره را ټول سی او یو امام مقرر کړی او نور مسجدونه پریږدی او په یوه مسجد کی دجُمعی لپاره سره رایو ځای سی او په یوه امام پسی لمونځ کوی نو



ددی څه حکم دی؟

**جواب**: ښه خبره داده چی حتی الوسع چی ترڅو کیدای سی ټول مسجدونه دی آبادسی او ډېر ډېر لمونځ گزاردی په ټولو مسجدو کی لمنځونه وکړی. او د مجبوری په حالت کی څرنگه چی موقع وی هغه رقم دی وکړی (فتاوی دار العلوم ۶۷/۳ بحواله ردالمختار ۶۱۷/۱ باب احکام المساجد)

## دامام فرائض منصبی

امام دخپل منصب (عُهدې) په لحاظ سره صرف دلمانځه ورکولو ذمه واردی. البته که دهغه (امام) سره دنصیحت کولو او طالبانو ته دسبق ویلو شرط ولگول سی او امام هغه (امام) ئی قبول کړی نو بیاددی کارونو ذمه واری هم پرده باندی راځی. داضروری خبره ده چی دامام سره دی دداسی کارونو شرط و نه لگول سی. کم چی دهغه دامامتی د حیثیت او دوخت څخه خلاف وی. (کفایة المفتی ۴۶/۳)

که دی (امام) په امامت او اُوبو تودولو باندی ملازم وی او دده په مزدوری کی د محلی څخه دوړی راوړل هم شامل وی نو په دی دده په امامت کښې څه تاوان نه راځی. که د محلی څخه دوړی راوړل په مزدوری کی شامل نه وی. بلکه دی ئی هم داسی د خپله ځانه غواړی او راوړی او د دی باوجود چه په څه مشروع طریقه ئی دکتی طاقت سته او بیائی هم دا

پیشه گر خوشی وی نو بیا داپیشه ناجائزه ده داسی شوک امام جوړول مکروه تحریمی دی چی بل شوک دامامت اهل موجود وی.(فتاوی محمودیه ۷/۶۱)

کله چی قوم یو سړی امام مقرر ولو او ټولو دهغه په ذمه دمسجد جارو کول او په حمام کښې اوبه ډکول شرط لګولی وی نو دامامت په شان به داهم دامام ذمه واری کی وی او که تقرری صرف په امامتی کی سوی وی نو دابیا دامام ضروری ذمه نه ده.(فتاوی محمودیه ج ۷/ص:۶۱)

## ﴿دپیش امام مرتبه﴾

دپیش امام عزت او توقیر کول پکاردی. دامام بی عزتی او اهانت کول سخته گناه ده.(کفایة المفتی ۳/ ۹۳)

## ﴿آیاامام خپل نائب ټاکلی سی؟﴾

(۱) که دمسجد یوه کمیټی وی نو هغه د امام یادنائب ټاکلو حقداره ده. خو که کمیټی نه وی نو بیا دلمونځ گزارو حق دی

(۲) نائب امام به هم هغه وی شوک چی دمسجد د کمیټی یادلمونځ گزارو لخوا وټاکل سی. یوازی امام ته دا اختیار نسته چی دی نائب ودروی. خصوصاً چی کله امام پخپله هم دامامت تنخواه داره ملازم وی(کفایت المفتی ۳/ ۸۴)





## ﴿دامام دلری کولو یادټاکلو حق﴾

فقهاؤلیکلی دی چی امام ساتل یا لری کول دمسجد بانی حق دی اودهغه د اولاد. که متولی دواقف لخوا شخه دشرطو نوسره برابروی نوهغه هم قائم مقام دی.او که دلمونځ گزارو او اکثریت لخوا یو نیک صالح سړی امام وټاکل سی نودی به امام ټاکل کیږی. (فتاوی دارالعلوم ۳/ ۷۸ وردالمختار وکتاب الوقف ۱/ ۵۷۳)

## ﴿دمسجدونو داماماونو تنخواه او شرعی ذمه واری﴾

﴿**سوال**﴾: د مسجد دامام شخه دامامت نه علاوه جارووهل، نالی صفا کول اذان کول او ددی شخه علاوه نورواړه غټ کارونه اخیستل کیږی او تنخواه ورته صرف دامامت ورکول کیږی نو په دومره لږ تنخواه دهغه نه دومره ډیر کارونه اخیستل جائز دی ؟ شرعاً دامام ذمه واری شه شی دی؟ دمسجدونو د اماماونو تنخواه څو پکار ده؟ که تنخواه دمعیار شخه کمه ورکړه کیږی نو متولی او محلی والابه گناه گاره وی او که نه؟ مفصل جواب ورکړی؟

﴿**جواب**﴾: په حدیث شریف کی راغلی دی" چی دمزدور مزدوری دی د هغه دخولې دوچیدو شخه ترمخه ورکوی". (مشکوٰة المصابیح ۲۵۸)

حضور ﷺ فرمائیلی دی "دقیامت په ورځ چی به د کمو درو کسانو خلاف دعوی وی په هغوی کی یو هغه سړی دی چی دیو مزدور

شخه پوره کارواخلي خو مزدوري بياپوره نه ور کوي" (بخاري بحواله مشكوة ٢٥٨)

دمزدورى دپوره نه ور كولو مطلب صرف داندى چى دهغه مزدورى مالك وخورى بلكه ددى شخه مرادداهم دى چى شومره مزدورى ددى كارومزدورته ور كول پكارؤ ودهغه شخه ئى كمه ور كړه.

فقهاء كرام رحمهم الله ددى خبرى تصديق كړى دى چى دمسجدمتولى اودمدرسى پرناظم باندى لازم دى چى د مسجداودمدرسى خادمانوته د هغوى دعلمى قابليت اوتقوى اوصلاح سره مناسبه تنخواه اووظيفه ور كړى. دګنجائش باوجود كمه تنخواه ور كول بده خبره ده او د متولى شخه به دالله په نيزپوښتنه كيږى. (درمختار ۳/۳۸۹ والشامى ۳/۷۸)

وامام ته صرف دامامت تنخواه ور كوى او بياپه امام باندى داذان ذمه وارى هم اچوى اوجاروهم په وهى اونالى هم په پاكوى اوپه نوروامورو كى هم خلمتونه په اخلى نودا ډيرغټ ظلم اودامام توهين دى. د نبى كريم ﷺ فرمان دى "دقرآن دحاملينو (حافظانو، قاريانو اوعلماؤ كرامو) تعظيم اوعزت كوى بيشكه چا چه ددوئ عزت او اكرام و كړى نوهغه زماتكريم اوعزت و كړى". (الجامع الصغير للامام الحافظ السيوطى ۱/۱۲۵)

په يوبل حديث شريف كى راغلى دى چى دقرآن حاملين داسلام علمبرداره دى (بيرغ پورته كونكى دى) چاچى ددوئ تذليل و كړى نوپه هغه



به دالله پاك لعنت وى. (فتاوى رحيميه ٤/٣٥٥)

كه تنخواه معقول نه وى او دامام اومؤذن لپاره په مسجدكى چنده وسى اولمونځ كونكى حضرات په خپله خوښه هغه ته چنده ور كړى اود تنخواه كمى په پوره كړى خو چى چنده په جبرنسى ټوله. كه داسى دامام او مؤذن امداد ونسى نوبيابه د دوئ ګزاره شنګه كيږى او شنګه به دوى ژوند تيروى؟ خوبهتره خبره داده چى دامام او مؤذن تنخواه دوخت سره سمه وټاكل سى (فتاوى رحيميه ٤/٤٣٧)

## ﴿دامامت اُجرت﴾

**﴿سوال﴾**: زيدوائى چى دمسجدامام نه اجيردى اونه نوكر ځكه چى هغه ته د وقف مال شخه تنخواه ور كول كيږى او عَمروائى چى امام اجيرهم دى او نوكرهم دى نودچاقول صحيح سو؟

**﴿جواب﴾**: كم امام چى دامامت تنخواه اخلى نودهغه په مزدورى كى هيڅ شك نسته. پرامامت باندى مزدورى متأخرينوفقهاؤ جائز كړى دى. اودوقف دمال شخه تنخواه ور كول ددى دليل نه دى چى دادى مزدورى نه وى او تنخواه اخيستونكى دى اجيريامزدورنه وى. كه دوقف تعميرلپاره دوقف مال شخه د تعميرعاملين مقررسى نو آياهغوى به اجيريامزدورنه وى؟ په دى كى د عُمرو خبره صحيح ده. (فتاوى دارالعلوم ۳/ ۸۷) پر امامت باندى تنخواه

اخیستل روادی.(ردالمختار ۱/۳۷٤،کتاب شروط الصلوٰة)

پـه تـنـخـواه داره امـام پسی لمونځ کول هیڅ پـرواه نـلری او هیڅ کراهیت نسته.په دی کی څه شک کول هم نَدی پکار(فتاوی دار العلوم ۳/۲۰)

## ﴿امام ته د رخصتی کولو حق سته او که نه؟﴾

**﴿سوال﴾** که یو امام د امامتئ تنخواه هم اخلی او بیا هم کله کله غیرحاضری کوی نو ددی څه حکم دی؟

**﴿جواب﴾**:امام امام لره دخپل ضروریاتو یادراحت لپاره دیوی جمعی یادی ته نژدی یعنی پنځلسوورځو څخه کم عادتاًغیرحاضری شرعاًرواده(شامی ۳/ ٦٤ کتاب الوقف) ددی خبری تصریح داده چی که په ټوله کال کی هفته یادوی هفتی امام غیرحاضرسی نوخیر دی معاف دی.نو دصورتِ مسؤله حکم هم ددی څخه کنټرل پکاری دی.چی دامام کله کله غیرحاضری به معاف وی.(فتاوی دارالعلوم ۳/۸۴ بحواله ردمحتار ۳/ ۵٦۴ کتاب الوقف)

## ﴿دغیرحاضرئ دوخت تنخواه اخیستی سی او که نه؟﴾

**﴿سوال﴾**: که د څه عُـذره یابغیره عُذره څخه دنیمـی میاشتی کم که امام صاحب دامامت کارونکړی نوشرعاًهغه دټولی میاشتی دتنخواه اخیستو حقداره دی او که نه؟

**﴿جواب﴾**:حاصل جواب دادی چی اَلْمَعْرُوْف كَالْمَشْرُوْطِ.نوچی څومره



غیرحاضری معروفه وی نـو دهغی تنخواه اخیستل به هم صحیح وی.او امامت به ئی هم صحیح وی (فتاوی دار العلوم ۳/۷۹بحواله ردالمختار ۳/۴٤۷) او دامام تنخواه کا ټول جائز ندی. او دا کار دشرع او دعُرف څخه خلاف دی (فتاوی دار العلوم ۳/ ۳۷٤ بحواله ردالمختار ۳/۵۲۵)

## ﴿دامام دغیرحاضری حکم﴾

**﴿سوال﴾**:دچادکارپـه وجـه امـام پـه هـفـتـه یاجمعه کی پنځه یا شپږواره غیرحاضری کوی نو ددی څه حکم دی؟

**﴿جواب﴾**:ښه خبره داده چی دمقتدیانوپه رضامندی دی داسی وکی.د مقتدیانو د رضامندی بغیرداسی کول ښه کارندی.(فتاوی دارالعلوم ۳/ ۱۳۳)

## ﴿دامام دحجاب یاپردی په احاطه کی داُوسیدلو حکم﴾

که د مسجدپه احاطه کی دننه دامام یامؤذن لپاره علیٰحده کمره وی نوپـه هغه کی دامام اومؤذن لپاره اوسیدل صحیح دی خو دبال بچیانوسره په اُوسیدلو کی عموماً بی پردګی کیږی نوداستنجا ځای ځانته نـه وی او دکوچنیانوشوراو ږغ به لمونځ ګزاروته تکلیف اوحرج پیدا کی.نوپه دی وجه دابه ممنوع وی که داخرابیانی نه وی نوبیاجائز دی.(فتاوی رحیمه ۹۵/٦)

## ﴿دامام دمسجدپه احاطه کی خپل کارکول﴾

که دکمری دروازه دمسجد وهغه حصی ته نه خلا صیږی کم چی د

لمانځه لپاره خاص ده یعني چي داخیستلو اوخر ځولـو والاپه مسجد کي نه تیریږي نو دامام داسي کار کول مباح دی.(**فتاوی رحیمه** ۳/۱۴۳)

پـه مسـجد کـي یعنـي پـه هغـه حصه کي کمه چي دلمانځه لپاره استعمالیږي پـه هغه کي اخیستل اوخر ځول یـابل داسي کارکول کم چي د لمونځ ګزارو لپاره دتکلیف باعث ګرځي یادمسجدداحترام خـڅه مخالف وي نـو داجـائـز او روانـه دی. دمسجدپه نوروحصو کي کمي چي دلمانځه لپاره نه استعمالیږي په هغه کي اخیستل اوخر ځول جائز او روادی خو دمتولي اجازت پکښې لازمي دی.(کفایت المفتي ۳/۱۶۷)

## ﴿آیاامام ځلورویشت ساعته پابنددی؟﴾

**﴿سوال﴾**: امـام یامؤذن مقیدکول چي ځلورو یشـت ساعته به په مسجدکي حاضروي دا حکمراني تر کمه حده جائزدی؟

**﴿جواب﴾**: کـه دامام یامؤذن دمتولي سره دامعاهده وي نوبیابه ددي مطابق عـمـل کوي. او که معاهده ئي نه وي نوبیاداسي پابندي لګول ظلم او زیادتي ده. اوناجائزدي. (فتاوی رحیمیه ٣٦٢/٤)

## ﴿په یو وخت کي دوه ځایه امامت﴾

هر کله چي دیو سړي لپاره معاوضه یامزدوري مقرره کړي وي او دیوه



مسـجدد امامت لپاره مقرر سوی وی نو ددغه مسجددامامت ذمه واری پر هغه بـاندي لازمي ده. که چیري دي دغه مسجد پر پردي او بـل مسجدته دامامت لپاره ځي نـو دا خبره ددغه امام لپاره ناجائزه ده. که دي دامسجد پرپردی اوبل مسجدلره ځي نـودي بـه دهغه مزدوري لائق او حقداره نه وي کمه چي دده لپاره مقرره سوی ده. که دا امام هم یولمونځ پـه دوو مسجدونو کي دوه واره ور کوي نو دادوئم لمونځ بـه جائزنه وي. ددی دوئم مسجدد مقتدیانو لمونځ نه صحیح کیږي. یعنـي ددوی غاړي دفرضیت څخه نـه خلاصیږي. بلکه د هغوی پر ذمه به فرض هم هغه رقم پاته وي

چونکه دامام اولني لمونځ فرض اداکیږي او په دوئم وار بیانفل لمونځ وي. اوحـال داچـي پـه دوئم مسجد کي دمقتدیانو لمونځ فرض دی او دامام دا نفل. نودفرضونیت په نفل والاپسی نه صحیح کیږي. نو پـدی وجه دناجائزه ده. (فتاوی محمودیه ۷/۷۹)

## ﴿دیوه امام دوه ځایه امامت کول﴾

**﴿سوال﴾**: کـم امـام چي دری وخته لمونځ پـه یـوه مسجدکي ورکوي اودوه وخته په بل مسجد کي نو آیاداجائزه ده او که نه؟

**﴿جواب﴾**: په دی کي دممانعت څه وجه نسته. (فتاوی دارالعلوم ۳/۱۶۹)



## ﴿په یوه مسجد کی ددو امامانو امامت﴾

که دوه امامان په دی وجه وی چی یوامام یو څوخلقوته لمونځ ور کوی اواوبل امام ونوروته نودامکروه ده.او که دامنشائی وی چی دوه امامان به وساتو کله به یولمونځ راکوی او کله به بل دضرورت لپاره.نوبیاپرواه نکوی.دوه امامان دی وساتل سی کله دی یولمو نځ ور کوی او کله دی دضرورت په وخت کی بل.(فتاوٰی دار العلوم ۳۶۹/۲ بحوالہ عالمگری ۵۱/ باب فی الاذان)

## ﴿یوسړی امامت او اذان ور کولی سی او که نه؟﴾

﴿سوال﴾ که امامت اواذان هم یوسړی ور کړی نو آیاداجائزه ده که نه؟

﴿جواب﴾یوسړی دی اذان هم کوی او امامت دی هم کوی داپه شرع کی صحیح دی اوپه دی کی ثواب ډیر دی.(فتاوٰی دار العلوم ۹۵/۳ بحواله رد المختار ۳۷۲/۱ باب الاذان)

## ﴿دوفات سوی امام دبچیانو کمک کول﴾

﴿سوال﴾امام صاحب وفات سویو څو کوچنیان ئی پریښول نواوس چی کمه وظیفه ودته دبیت المال یادمحلی والالخواور کول کیده ددغی وظیفی شرعاً حقداره دغه یتیمان بچیان دی او که نه؟

﴿جواب﴾:دبیت المال هم هغه حکم دی کم چی پورته تیرسو.ددغی



وظیفی څخه دی ودغه بچیانوته دامام صاحب کمک و کړه سی.اودمحلی خلقوچی دامام لپاره دچاندی څخه یوڅه ورکول هغه دی ودغه یتیما نوته هم ور کوی.اودضرورت په اندازه ددوئ امداداو کمک کوی اوددوئ پالنه دی کوی.اگرچه دوی ته به دنوی امام ضرورت هم وی اودهغه دتنخواه انتظام هم پکاردی.او که یوامام ورته بغیردتنخواه څخه ورته ملاؤنه سونوبیادی هم د یتیمانو دبچیانو امداداو کمک پرخان باندی لازم و ګڼړی اودآخرت ثواب دی حاصل کړی.(فتاوٰی دارالعلوم ۹۵/۳ بحواله مشکوۃ شریف ۳۷۲/۳ باب الشفقة)

## ﴿په امامت کی دذات لحاظ کول﴾

په امامت کی دذات پات یاقوم هیڅ لحاظ نسته صرف د اَفضیلت لحاظ ئی کول کیږی.اوددی خبری لحاظ دی هم وساتل سی چی په جمُعه کی دی هم کمی نسی رااولمونځ کونکی هم سره منتشرنسی.

نوپه لمونځ گزاروکی چی کم غوره وی هغه دامامت حقداره دی چی لمونځ صحیح او کامل اداء سی.اومقتدیان په ډیرتعداد کی په لمانځه کی شریک سی.نو د داسی یوقوم یاقبیلی سړی چی خلق ئی ذلیل اورذیل ګڼړی اوپه علم اوتقویٰ کی تر ټولوښه وی اوپه دی دُنیاکی نورخلق دده ادب او حترام کوی نوبلا شبهه په هغه پسی لمونځ کول بهتره دی.هیڅ کراهت نسته پکښې. البته که دهغه افعال داسی وی چی دهغو پر بناء باندی دی په

خلقو کی ذلیل اوبی وقعته وی نوبیادداسی امام جوړول نـدی پکاراوداکار کول مکروه دی. چی هر کله خلقو دهغه عزت او احترام نکوی نوپه هغه پسی په لمونځ کول هم نه خوښوی اوجُمعه به کمه سی. چی افضله سړی امام جوړ کی نوپه دی کی دا مصلحت دی چی خلق به دده سره مینه کوی اوپه جُمعه کی به شرکت کوی او دغه رقم به جَمْعه هم درنیږی.(فتاوٰی عالمگریه ۸۲/۱)

افضل امام هغه څوک دی چی په شرعی احکامو دټول څخه زیات خبروی اوقرآن مجیدپه تجوید سره سم اوصحیح وائی.هم دار نګه پرهیزګار وی صحیح عقیده اودلوړ حسب اونسب والاوی بنه بنائسته اومعمَّره وی نسبی شرافت پکښې وی(خوش الحانه وی) بنه اخلاق ولـری پاکی جامی اغوندی.نودا سی امام دامامت حقداره اولائق دی.خلق به په رُغبت سره دده اقتداء کوی اوبنه درنه جَمْعه به در یږی.په حدیث شریف کی را غلی چی که ستاسی داخو بنه وی چی ستاسی لمنځونـه دی دالله په دربارکی قبول سی نو پکـارده چی علماء تاسی ته لمونځ درکړی.اوپه بل حدیث شریف کی داخ… چی پـه تاسو کی تر ټولـو زیات نیک اوپرهیز ګاره سړی دی ستـاسی امامت وکړی ولی چی دی ستاسی اودالله په مابین کی استازی دی.(شرح نقایه ۸۱/۱)

پـه نـنی عصر کی بایدیوامام دعلم زُهداوتقوٰی سره باید ددی شیط… سیاست څخه ځان وژغوری اوبی ځایـه دی پـر چـابـاندی غلطه اوبی اس…



فتوی نـه لګوی.دی بـایـد دالله دین پـخپل ځان کـی جـاری ولـری اوخپلو مقتـدیانوته حق خبری وکړی اګرکـه حق ویل یو څه تـرخه دی.دَی به ددِی لـحاظ نکوی چی ما به دامامت څخه جواب کړی.ولی چی رزق دالله په لاس کـی دی. کـه دامعیارغوره سی نواُمیلسته چی غیرخلق به ددین وخواته رُغبت وکړی.اویـوامـام یاعالم دی دقرآن مجیدد مثـقـال ذرةٍ حساب کـول په خپل ذهـن کـی ولری.اودااحساس دی په ځان کی پیدا کړی چی صبـاپه قیامت باندی زما څخه دمثقال ذرةٍ حساب کیږی آیا د دی جواب زه ورکولای سم اوکـه نه ؟که دآخرت دغه فکرپه یوچاکی وی نوهغه هیڅ کله بیابی ځایه نه د چاسـره اختـلاف کـوی اونه پربل چا بـاندی غلط اود ځانه څخه جوړسوی حکم کوی(مترجم)

## ﴿دیو داسی سړی امامت چی دهغه لاس پری سوی وی﴾

**﴿سوال﴾**: کـه یو داسی سړی امـام وی چـی یـولاس ئـی نه وی اونابینایعنی ړوند هم وی نو دداسی امام امات جائزدی اوکه نه؟

**﴿جواب﴾**: پـه داسی سړی پسی لمونځ کـول جائز او صحیح دی خوکه بل امام چی په ستر ګوبیناوی اودوا ړه لاسونه ئی جوړوی اودلما نځه دمسائلو څخه خبروی اونیـک سړی وی نوددغسی سړی امامت بهتره دی .(فتاوٰی دارالعلوم ۱۶۵/۳ بحواله ردالمحتار ۵۲۳/۱ باب الامامت)

## دداسی سړی امامت چی لاس ئی کوچنی وی

(سوال) زمابنې لاس دغوړنرمی ته نه رسیږی په داسی حالت کی زماامامت کول(په پنځه وخته لمونځ اوجمعی دورځی دلمانځه)لپاره جائز دی اوکه نه؟

(جواب): په دی صورت کی دسائل پنځه وخته لمونځ اودجمعی د ورځی لمونځ ورکول بغیرد څه کراهیت څخه جائزدی. دامامت د کراهیت پکښې هیڅ وجه نسته. ولی چی فقهاؤچی کم دالیکلی دی چی ګوتی به د تکبیرتحریمه په وخت کی دغوږو د نرمی سره مبتلې نوهغه په اصل کی د محاذاتو(یورقم کولو) د حاصلولولپاره دی لکه څنګه چی فقهاؤ دتحقیق څخه او د روایاتو څخه معلومیږی.

نوکه دیوعُذردوجهی څخه لاس غوږوته نسی وروړلای اونه رسیږی اود ګوتودغوږوسره محاذات حاصل سی نوداسُنت به ادء سی. (فتاوی دار العلوم ۳/۱۶۵بحواله هدایه ۱/۹٤)

## دلاس پری سوی سړی امامت

(سوال ۱) دمقطوع الید(لاس پری سوی)سړی امامت څه حکم لری؟
(سوال ۲) تردیره وخته وریسی لمونځ کړو،بیاوروسته یو څوخودغرضه خلقوپه مقطوع الیدباندی الزام ولګاوی اوپه خپله هم لمونځ نه پسی کوی او



نورخلق ئی هم دلمانځه څخه منع کول. نوداخبره ترکمه ځایه پوری صحیح ده؟

(جواب) نمبر ۱: که داسړی طهارت اوپاکی په ښه ډول سره کولای سی اود ی اهتمام لری نودده امامت شرعاًصحیح دی. کنی بیامکروه دی. د صحیح او سالم امامت په هرحال کی اولیٰ اوبهتر دی.

نمبر ۲: داختلاف څخه ځان ساتل پکاردی. که په ده پسی دلمونځ کولو څخه یو څه شرعی عُذرمانع وی نوپکارده چی په اتفاق سره بل څوک امام کړی صرف دخودغرضی پربناء باندی اختلاف پیداکول ګناه ده.(فتاوی محمودیه ۲/۲۰۳بحواله ردالمختار ۱/۵۸۷)

## دچاچی پښې پری سوی وی دهغوی امامت

(سوال) د یوسړی دواړه پښې ترګونډو پوری پری سوی وی اوددی په وجه سره رکوع اوجلسه کماحقه نسی اداکولای البته قرآن مجیدسم ویلای سی. دلمانځه او روژی پابنده دی. نودده دامامت لمونځ صحیح دی اوکه نه؟

(جواب) په داسی سړی پسی لمونځ کول صحیح دی خوغوره خبره دا ده چی بل امام مقرر کړی. دچاچی لاس اوپښې جوړاو سالمی وی. اودامامت په صفاتوباندی متصف وی. ردالمختارلیکی چی دمقطوع الرجلین(هغه څوک چی دواړی پښې ئی پری سوی وی)امامت په درجه اولیٰ سره

مکروه دی (ردالمحتار ۱/۵۲۵ باب الامامت) اگرچه لمونځ ورپسې صحیح کیږي. خو ښه خبره داده چې بل امام مقرر کړي (فتاوی دارالعلوم ۳/۲۰۸م)

## ﴿کم سړی چې په سُجده کولو باندې قدرت نلري دهغه امامت﴾

﴿**سوال**﴾ کم سړی چې دسُجدې څخه عاجزه وي او باقي ټول ارکان رکوع اوقومه اونورپه ښه شان سره اداکوي اوپه ولاړه سره لمونځ کوي داسې سړي لمونځ صحیح دی او که نه؟

﴿**جواب**﴾: په داسې سړي پسې دهغه خلقو کم چې سُجده کولای سي صحیح نه دی (**فتاوی دار العلوم ۳/۱۵۷**)

## ﴿د کانړه، شل، چُغلخور او دبړک سړي امامت﴾

په یو ستر که باندې ړوندسړي پسې لمونځ کول مکروه نه دي ړوند که د مُرداري څخه ځان نسو ساتلای او احتیاط نکوي. او د ټولو څخه غټ عالم هم نه وي. نوپه ده پسې لمونځ کول مکروه دی او که دی په خلقو کې دټولو څخه غټ عالم وي نو بیاپه ده پسې لمونځ کول مکروه نه دی

په جذامي، برګي والا، شل او چُغلخور پسې لمونځ کول مکروه دی او که دې خپل کوروالادبې پردګي څخه منع کوي اودابدګڼړي نو بیاپه ده پسې لمونځ بغیرد څه کراهیت نه صحیح دی. او څوک چې درواغ وائي دهغه پسې لمونځ مکروه دی. (**فتاوی دار العلوم ۳/۱۹۵ بحواله ردالمختار ۱/۵۲۳**)



## ﴿دبرص والا (فِسُ) امامت﴾

﴿**سوال**﴾ یو امام صاحب داسې دی چې دینیات ئې ویلي دي بعضې حضراتو په ده پسې لمونځ کول په دې وجه پریښول چې دهغه په بدن کې دبرص مرض دی هغه ئې علاج کوي په ده پسې لمونځ جائز دی او که مکروه؟

﴿**جواب**﴾: په دې امام صاحب پسې لمونځ بغیرد څه کراهیت څخه صحیح دی. ځکه چې فقهاؤپه دې حالت کې په ابرص پسې لمونځ کول مکروه په کراهیت تنزیهي لیکلي دي. کله چې برص دده په ظاهربدن وي یعني دبرص پرې ډیرې علامې وي چې دهغه په وجه مقتدیان متنفره کیږه او که برص ظاهرنه وي او نه مقتدیان متنفره وي نو بیاددهٔ په امامت کښې هیڅ کراهیت نسته. (**فتاوی دار العلوم ۳/۲۵۶ بحواله ردالمختار ۱/۵۲۵ باب الامامت**)

په مبروص پسې لمونځ کیږي البته که برص والادومره ښکاره وي چې مقتدیان ترینه نفرت کوي نو بیادهغه امامت مکروه دی. دی په حوض کې اودس کولای سي ځکه چې په برص کې څه ظاهري نجاست نسته. صرف په بدن داغونه وي اودی دمسجدلوښي هم داودس لپاره استعمالولای سي (**کفایت المفتی ۳/۸۶**)

## ﴿په ناستې دلمونځ ور کونکي امامت﴾

دولاړسړي لمونځ په ناست سړي پسې جائز دی لکه څرنګه چې نبي

کریم ﷺ په مرض الوفات کې په ناستی لمونځ ورکړی.

نو بیا که چیری امام په دومره اندازه معلوره وی چې نسی ولاړیدلای نو هغه دی په ناستی لمونځ وکړی نو دده لمونځ صحیح دی.او په ده پسی د شالخوا لمونځ کول صحیح کیږی.(فتاوٰی دار العلوم ٣/ ٣٠١)

## ﴿دپک امامت﴾

﴿**سوال**﴾ په پک پسی لمونځ کول صحیح دی او که نه. او په پک پسی دلمانځه د مکروه والی کم حدیث شریف سته او که نه؟

﴿**جواب**﴾ په پک پسی لمونځ کول جائز دی کله چې دی بنه سوی وی او په سر کی هیڅ زخم نه وی.نو لمونځ په ده پسی بغیر د څه کراهیت څخه صحیح دی.په پک پسی دلمانځه دمکروه والی کم حدیث شریف نسته.

(فتاوٰی دار العلوم ٣/ ٣٠١)

## ﴿دنابینایاړانده دامامت حکم﴾

فقهاء کرام ددا سی نابینایاړانده امامت چې غیرمحتاط وی او د نجاست څخه نه بچاو یری مکروه تنزیهی ئی بللی دی.خو دا حکم عام نه دی بلکه دا دغیرمحتاط سره خاص دی.نو چې کم ړوند احتیاط کوی او د نجاست څخه ځان ساتلو بنه پوره اهتمام کوی او ځان پاک او صفا ساتی دهغه امامت بی له د څه کراهیته څخه جائز بللی دی.



دحضرت عائشة صديقه رضى الله تعالىٰ عنهابیان دی چې نبی کریم صلی الله علیه وسلم چې کله غزوه تبوک له تلی نو حضرت عبدالله بن اُم مکتوم رضی الله تعالیٰ عنه چې په ستر ګو ړوندلو په مسجدنبوی ﷺ کې ئې دلمانځه دورکولو لپاره خپل قائم مقام یانائب مقرر کړی.دغه رقم حضرت عبدالله بن عُمیر رضی الله ړوندلو خو دخپلی قبیلی امام ؤو.هغه فرمائی چې زه درسول الله ﷺ په مبارکه زمانه کې دبنی حطمه امام وم حالانکه زه نابیناوم.

(**فتاوٰی رحیمیه ٤/ ٣٦٣**)

د ړانده اقتداء مکروه تنزیهی ده.البته که ړوند د ټولو څخه افضل وی او دمسائلو څخه زیات خبروی نو بیا هیڅ کراهیت پکښې نسته.بلکه دی امام جوړول افضل دی.(**احسن الفتاوٰی ٣/ ٢٦٠**)

دهدائی کتاب مصنفؒ د ړانده سړی دامامت دمکروه والی دوی وجهی لیکلی دی (١) یوه خو داده چې دی دنجاست او مرداری څخه ځان نسی ساتلای.(٢)دوئم داچې خلق نفرت ځنی کوی.نو که دا دواړه وجهی نه وی نو د ړانده امامت بی له څه کراهیت څخه صحیح دی.عبدالله بن اُم مکتوم او عُتبان رضی الله تعالیٰ عنهمانبی کریم صلی الله علیه وسلم امامان مقرر کړی ؤو.(**فتاوٰی دار العلوم ٢/ ١٢٧**)



## ﴿دږیری کونړی کونکی امامت﴾

**﴿سوال﴾**: په هغه سړی پسی لمو نځ څنګه دی چی ږیره ئی کو نړی کړی وی یائی خریلی وی؟

**﴿جواب﴾**: دیوه مُټ څخه ږیره کمول حرام دی.بلکه دا دنورو ګناو څخه هم بلتره ګناه ده.ځکه چی دایو علانیه کاردی نوپه دی وجه دابنکاره ددین توهین دی.اودالله اودرسول الله صلی الله علیه وسلم څخه دبغاوت اعلان دی .نوپه دی وجه فقهاؤفیصله کړی ده چی کم سړی په روژه مبارکه کی ښکاره خورک کوی یعني په قصد سره روژه خوری بی له څه عُذره نوهغه واجب القتل دی. ځکه چی دی په ښکاره طریقه د شریعت مخالفت کوی. د حضورصلی الله علیه وسلم ارشاد ګرامی دی"زماامت د بخښنې لائق دی خو په ښکاره ګناه کونکی دبخښنې لائق نه دی".

دوئم فرق دادی چی نوری ګناوی په څه خاص وخت کی کیږی خو دږیری کونړی کولو ګناه هر وخت ورسره مُبنتي وی.داکه دی بیده وی او که ویښ اوکه ولاړوی اوکه ناست روان وی که ساکن هر وخت دده سره دا ګناه موجوده وی اودی په دی ګناه کی اخته وی.اودلما نځه اونورو عباداتو په وخت کی هم ورسره دا ګناه موجوده وی.اودقوم لوطؑ دعذاب یوه وجه د ږیری پریکول هم ؤو.(دُرمنثور)



مقصدادچی ږیره کونړی کونکی اوخرونکی فاسق دی اودفاسق امام امامت مکروه تحریمی دی.نو په دی سبب داسی سړی امام جوړول جائز نه دی.که یوداسی سړی جبراًامام جوړ سوی یادمسجدلمنتظمینوجوړ کړی اوپه لری کولوکی ئی قدرت نه ؤو نوچیری بل مسجدکی چی نیک امام وی هلته دی ولاړسی .که بل ځای هم نیک امام نه ؤونوبیادی په دغه فاسق پسی مجبوراً لمو نځ کوی.دجُمُعی لمو نځ دی نه پریږدی.چی ددی وبال او عذاب به د مسجدپه منتظیمنوباندی وی.(احسن الفتاوی ۳/۲۶۰)

که بل امام دده څخه ښه نه پیداکیدی نوداسړی دی نه امام کوی.ده ته دی وویل سی چی یو مُټ ږیره پریږده نوکه ئی ږیره غټه کړه نوبیاصحیح ده.(کفایت المفتی ۳/۸۷)

په امدادالمفتین کی د ږیری په متعلق لیکلی دی چی دږیری کونړی کولو والایاږیری خریونکی فاسق او ګناه ګاردی.دداسی سړی امام جوړول پکارندی. ځکه چی په ده پسی لمو نځ کول مکروه تحریمی دی. او که دی امام جوړسی نودی به واجب التعظیم وی.نوپه دی وجه دده امام جوړول جائز نه دی.(امداد المفتیین ۱/۳۶۱ بحواله شامی ۱/۳۷۶ باب الامامت)

چی څوک ږیره خروی دهغه امامت مکروه دی البته که ټول مقتدیان ږیر خرئیلی ؤونوبیادی ږیر خرئیلی امام سی.(کفایت المفتی ۳/۵۷)

## ﴿دریری کونډی کولو ځخه توبه کښونکی امام صاحب﴾

**﴿سوال﴾**: یوسړی دی چی ډیره کونډی کوی یا ئی خروی. اوس هغه په ریښتونی توګه توبه وکښل دریری کونډی کولو ځخه او دخریلو ځخه اودریری پریښنو لوقصدئی کړی دی نوپه دی حالت کی هغه توبه کړی دی خوډیره لااوس نه ده غټه سوی اونه ډیره راختل دده په وس کی ده. نوآیا ددی په امام جوړیدلو کی څه کراهیت سته او که نه؟

**﴿جواب﴾**: دتوبی کښلو باوجود دداسی سړی امام جوړولو کی به په دووجهو کراهیت وی. یو داچی پرده باندی لاتراوسه داصلاح اثرندی ښکاره سوی. دا فیصله نسی کیدلای چی په آئنده کی به دی ددغه کبیره ګناه ځخه پرهیز کوی او که نه؟ دونمه وجه ئی داده چی کمو خلقوته ددغه امام دتوبی علم نسته هغوی به په مغالطه کی ولویږی اوهم به دا وګڼی چی فاسق لګیادی لمونځ ورکوی. (**احسن الفتاوی ۳/۲۶۳**)

دداسی امام جوړول مکروه دی. البته که دی پخپله امام سی او جُنبه ورکوی نولمونځ نخ پسی کیږی اګرچه هغه ثواب به نه ورکول کیږی. (**فتاوی محمودیه ۷/۴۳**)

## ﴿دجوړسړی اقتداء په ناجوړه(معذور) پسی﴾

**﴿سوال﴾**: د صحت مندا قتداء په معذوره یاناجوړه پسی صحیح ده او که نه؟



**﴿جواب﴾**: صحیح نه دی. (**احسن الفتاوی ۳/۲۶۴ بحواله ردالمختار ۱/۵۴۲**) ولی چی دابناء دطاقوړده پر کمزوری باندی.

## ﴿خوک چی مسح کوی دهغه امامت﴾

**﴿سوال﴾**: یوسړی دیو عُذر په وجه پریوه اندام باندی مسح کوی اونور خلق داسی عُذر نلری نو دهغوی لمونځ په دغه معذورامام پسی صحیح کیږی او که نه؟

**﴿جواب﴾**: په داسی امام پسی لمونځ کول صحیح دی. (احسن الفتاوی ۳/۲۶۴) ځکه چی دی دمعذور شرعی په حکم کی نه دی. وَصَحَّ الْاِقْتِدَاء مُتَوَضِیءٍ بمتیمم و غاسل بما سح ولو علی جبیرة الخ (**درمختار ۱/۳۹۶ باب الامامت**)

## ﴿دهغه سړی امامت کم چی په بواسیرواخته وی﴾

**﴿سوال﴾**: یو سړی داسی دی چی دخونی بوا سیرو په مرض باندی اخته دی. هروخت دده ځخه دوینی دجاری کیدلو بیره وی دداسی سړی امامت باوجو د ددی چی صحت مندامام هم موجود دی صحیح دی او که نه؟

**﴿جواب﴾**: صرف دوینی دجاری کیدلو ویری ځخه دغه سړی شرعاً معذوره نه بلل کیږی. شرعاًدی هغه وخت معذوره بلل کیږی چی د لمانځه په ټولو وختو کی وده ته وینی راځی. اوده ته دومره موقع په لاس نه

دی لاتر اوسه معذوره سوی نه وی دده امامت صحیح دی. او څه کرابیز[...]
نسته پکښې. کم وخت چې دی معذوره سی نو هغه وخت بیا دی دجوړو[...]
امام نسی جوړیدلای. اوس به نو دده امامت دعُذر په وجه سره بالکل ناجیز[...]
وی. (فتاوٰی دارالعلوم ۲۰۳/ بحواله شامی ۱/ ۲۰۳أ۳۸۹)

## ﴿دهغه سړی امامت څوک چې سُلسُل بول[...] شک کې اخته وی﴾

﴿سوال﴾ یو سړی دسلسل البول په مرض اخته ندی خو چې اندام[...] ورکړی نو د بولو څاڅکی څنی راځی. او بعضی وختونه داسی خیال را[...] چې دمچاړو څاڅکی د خپل ځایه څخه راوتلی دی. خو په نظر کې نه راځی[...] داسی سړی امامت څه حکم لری؟

﴿جواب﴾ په کم حال کې چې څاڅکی نه راوزی نو دی امام کیدای[...] وهم او شک ته اعتبار نسته. (فتاوٰی دارالعلوم ۲۰۳/ بحواله الاشباه والنظائر[...])

## ﴿دکوزن وهلی امامت﴾

بلا کراهیته لمونځ[...]

## ﴿[...]ی دهغ[...] امامت﴾



﴿سوال﴾: یو سړی دڅلویښتو کالو راهسی امامت ورکوی خود دری څلورو کالو راهسی دهغه په نظر کې فرق راغلی دی. خو پاکی او ناپاکی په خپله لیدلای نسی لیکن خلق اعتراض پر کوی چې په ده پسی لمونځ کول مکروه دی. صحیح حکم ئی څه دی؟

﴿جواب﴾: په دغسی امام پسی بلا کراهیته لمونځ صحیح دی. (فتاوٰی دارالعلوم ۱۹۹/۳)

## ﴿دنائی یا حجام امامت﴾

نائی یا حجام (سرجوړونکی او ږیښتان پریکونکی) که ددین په مسئلو باندی خبر وی او دینداره هم وی نو امام کیدای سی. خو که دی دخلقو ږیری خریی نو بیا به فاسق وی په ده پسی بیا لمونځ کول مکروه دی. او که دی جاهل وی او دینداره هم نه وی او دنائی توب پیشه کوی نو بیا دده لپاره امامت ورکول افضل نه دی. مجبوراً په ده پسی جمعه کول دیوازی لمانځه څخه بهتره ده ځکه چې دجُمعی دلما نځه تاکیدسوی دی. او د جُمعی اهمیت ډیرزیات دی. (فتاوٰی رحیمیه ٤/ ٢٥٧)

## ﴿دچاپه ژبه کې چې لکنت وی دهغه امامت﴾

﴿سوال﴾: زه احقر د یوه مسجدامام یم د څه مودی راهسی می په ژبه کې لکنت راځی او هغه هم صرف داَلْحَمْدُلِلّٰهِ په الف لام باندی. کله چې سورة

الفاتحه شروع کم نو آآآ و کړم.اودهمزه تکرار راڅخه وسی.اولږساعت ورو
سته بیا دالْحَمْدُلِلّٰهِ تلفظ اداسی.ددی وروسته بیاپاته تلاوت صفاء وی.ددی
شرعی حکم څه دی؟

**﴿جواب﴾**:په دی باره کی بهتره خبره داده چی ستاامامت نه صحیح کیږی اولمونځ دإعادی قابل به وی. اولفاظ آآآ ډیرقبیح اودقرأت په قانون کی لحن جلی دی.تاسوباید دلمانځه ورکولوجرأت ونه کړی.(فتاوی رحیمیه ۴/۲۵۲ بحواله شامی ۱/۵۴۴)ددی مسئلی تفصیل په"الفقه علی المذاهب الاربعه"نومی کتاب کی داسی دی.

"دامامت دصحت په شرائطو کی یوشرط داهم دی چی دامام ژبه (تلفظ)دی صحیح وی.دیوحرف پرځای دی بل حرف نه اداکیږی مثلاً د "ر"پرځای "غ" "س" او د"ث" "ذ"پرځای "ز"یاد"ش"پرځای "س"او نور.په دی وجه داسی سړی ته الثغ وائی ځکه چی د"الثغ"لغوی معنیٰ ده د ژبی دیو حرف څخه وبل حرف ته اوړیدل هم دداسی کیفیت را تګ دی".

په داسی سړی واجب دی چی خپل الفاظ سم کړی اوچی ترڅو کیدای سی نودحرف تلفظ دی په صحیح طریقه د اداء کولو کوشش و کړی. که بیاهم ددی څخه نیمګړی وی نوده ته دخپل ځان په رقم کسانو څخه بغیر دبل چاامام کیدل نه دی پکار. که په چا کښي داخامي یاکمزوري وي اوهغه



دخپلی ژبی داصلاح کوشش ونه کړی نود هغه لمونځ به له سره باطل وی او امام کیدل خوئی لاڅه کوی؟

په دی مسئله کی چی کم بیان دلکنت(ترب ژبی)والاوسوهم هغه حکم دهغه سړی دی څوک چی په غلطه طریقه یوحرف په بل حرف کی مدغم کړی مثلاً"س" په "ت" بدلوی او د"س" څخه وروسته چی کم "ت"حرف وی په هغی کی ئی ګډوی لکه لفظ "مُستقیم"په صحیح طریقه د اداء کولوپرځای"مُتّقیم" وائی داسی لمونځ ګزاروته واجب دی چی دخپلی ژبی په اصلاح کی کوشش و کړی که په اصلاح کی ناکامه سی نودی به یادخپل ځان په رقم دکسانو امام خوجوړیدلای سی لیکن د نورو خلقو امام نسی جوړیدلای.اوکه ئی په اصلاح کی غفلت و کړی نودده لمونځ به هم باطل وی اوامام کیدل به ئی هم.

په دی کی یوه بله خامی داده چی هغی ته (فافا)وائی یعنی په خبرو کی ځنی بار بارد"ف"آوازووزی او یا"تمتام"وی یعنی باربارد" ت"تلفظ کوی نودداسی سړی د امامت هم هغه حکم دی کم چی دلکنت والا پورته تیرسو یعنی په دی سړی کی که مذکوره بالاشرطونه نه وی نوامام کیدل ئی مکروه دی. **(کتاب الفقه علی المذاهب الاربعه ۱/۶۵۸)**



## دملاټیټي امامت

دامامت دصحت لپاره داضروری ده چی دامام مُلادی دومره ټیټه نه وی څومره چی درکوع په حالت کی وی که دامام مُلادومره ټیټه وی چی خلق وائی ګنی رکوع له تللی دی نودسم سړی به په ده پسی لمونځ صحیح نه وی.البته که کم امام اومقتدی دواړه یورقم ؤونوبیاخیردی دده امامت صحیح دی.(کتاب الفقه علی المذاهب الاربعه ۱/۲۷۳)

## دترتری امامت

﴿سوال﴾:یوترتری ژبی والاامام چی علم ئی هم نه ؤو،مقتدیانوته ئی لمونځ کولودیورګڼ کولوورروسته یوعالم صاحب لمانځه ته راغلی نوهغه به په جُمُعَه کی شریکیږی او که نه؟

﴿جواب﴾:هغه عالم کم چی ورروسته راغلی که هغه خپل لمونځ ځانته وکړی نودهغه لمونځ به هم صحیح وی اوکم اُمِّی چی د مخکښې څخه په لمانځه کی اخته ؤواولمونځ ئی کاوی نودهغه لمونځ به هم صحیح وی. که دغه عالم په دی ترتری پسی اقتداء وکړی نوبیابه دهیچالمونځ هم نه صحیح کیږی نوددی عالم اونه دهغه اُمیانو کموچی مخکښې لمونځ کولو.(فتاوی دارالعلوم ۳/۱۱۲ بحواله ردالمحتار۱/۵۴۵ باب الامامت)

ترتری دبعضی حروفوپه اداء کولوقادرنه وی نوپه دی وجه دهغه



امامت جائزنه دی.خودخپل ځان په رقم دخلقوامامتی هغه وخت کولی سی کله چی په قوم کی داسی یو سړی موجودنه وی چی هغه داحروف صحیح اداء کولی سی که په قوم کی یوداسی سړی موجود وی نودترتری امام اودټول قوم لمونځ به فاسد وی.(فتاوی هندیه ۱/۱۳۴)

## دګوډ امامت

دګوډ سړی امامت جائزدی خودداسی سړی څخه عموماًطبعی انقباض وی.نوپه دی وجه دداسی سړی امامت مکروه تنزیهی دی.البته که هغه صاحب علم اوتقوی والاوی اوخلق څنی انقباض نه کوی نوبیاتنزیهی کراهیت هم نسته.(احسن الفتاوی ۳/۲۱۸ بحواله ردالمحتار ۱/۵۲۵)

یوداسی ګوډ چی ښه سم نسی دریدلای دهغه امامت مکروه تنزیهی دی که یوجوړ او سالم سړی چی دلمانځه دمسئلو څخه واقف وی اوهلته موجودوی نوبیاهم دی اولیٰ دی. که داسی یوبل سړی موجودنه ؤو چی هغه دلمانځه دمسئلو څخه خبروی او ګوډ دلمانځه د مسائلوڅخه خبروی نوبیادده امامت افضل دی.(فتاوی دارالعلوم ۳/۱۷۷)

## دګوڼ امامت

﴿سوال﴾کم سړی چی ګوڼ وی اوبالکل نه اوری دهغه امامت څنګه دی؟

﴿جواب﴾:دګوڼ امامت صحیح دی.(فتاوی دارالعلوم ۳/۱۷۷)

## ﴿دهغه سړي امامت چې په لمانځه کې بیلیږي (خوب کوي)﴾

په لمانځه کې په بدیدو باندې لمونځ نه فاسد یږي او په لمانځه کې چې څه خلل نه راځي البته که په قرآن ویلو یعنې قرأت کې څه داسي غلطي وکړي چې معنٰی ئې بدلیږي او د هغه غلطي په وجه سره په لمانځه کې فسادراځي نو لمونځ به فاسدسي خو په دې کې بیده او ویښ دواړه برابر دي.

## ﴿چې تعویذ کنډي دهغه امامت﴾

چې په قرآني آیاتونو او په مأثوره دُعا ګانو ساخت او تعویذ کول صحیح دي نو په دې وجه دداسي کار کولو والا په امامت کې څه کراهیت نسته. البته په دې د دروغو او دافتراء خصلت دفسق او معصیت موجب دی او په داسي سړي پسې لمونځ مکروه دی. (فتاوی دارالعلوم ۳/۱۸۷ بحواله ردالمختار ۱/۵۲۳)

## ﴿دغیرمختون (ناسُنته) امامت﴾

﴿سوال﴾: په ناسُنته سړي پسې لمونځ کول شرعاً څنګه دی؟

﴿جواب﴾: سُنت کول دپیغمبر علیه الصلاة والسلام طریقه ده څوک چې دضرورت بغیر دا پریږدي نو هغه تارک السنة دی. که دقدرت او وسعت باوجود څوک بدن په غسل او استنجا پاک نه ساتي نو بیادي هیڅکله نه امام کوي او که ئې پاک ساتي نو بیادده امامت صحیح دی. لمونځ پسې



کیږي. اګرچه دَ دِیٔ تارک السنة په مقابله کې دعامل سنت په مقابله کې د عامل سُنت امامت مقدم دی. (فتاوی محمودیه ۲/۹۸) په دې شرط چې دی اتفاقي طور غیرمختون پاته سوی وی او دسنت قائل وی (کفایت المفتی ۳/۴۴)

## ﴿دمعذور امامت﴾

طاهر (پاک سړی) ته په معذور پسې اقتداء کول چیرې هم جائز نه دي. البته معذور په طاهر پسې اقتداء کولای سی. او دیو معذور اقتداء په بل معذور پسې جائزه ده. په دې شرط چې دواړه معذوروي. او که چیرې د دواړو عُذرونه سره جلاجلاوي نو بیاهم دیوه په هغه بل پسې اقتداء نه ده جائزه.

که امام په شرعي طور باندې معذور نه وي بلکه اتفاقي طور ورته یو عُذر کله کله وروپیښ سي نو بیادده امامت صحیح دی. (فتاوی محمودیه ۲/۱۰۰)

## ﴿دنامرده امامت﴾

﴿سوال﴾ (۱) که څوک په څه وجه نامرده سي نو دده اقتداء جائزه ده او که نه؟

(۲) که دپیدائش څخه څوک نامرده وي نو دده اقتداء جائزه ده او که نه؟

﴿جواب﴾ (۱) که څه مانع نه وي نو بیاصحیح دی. (۲) جائزه خو ده خو چې نرښځي نه وي. دنرښځي امامت دښځو لپاره جائز دی دنرانو لپاره نه دی جائزه. (فتاوی محمودیه ۲/۱۰۱)

## ﴾دزناکاری دزوی امامت﴿

﴾سوال﴿: یو حافظ صاحب دی ډیر ښه آوازئی دی دلما نځه اوروژی

دی او ښه اخلاق هم لری.قرآن شریف ئی هم ډیر ښه یاد دی

ولدالزنا یعنی حرمنی دی.نو آیا دی امام جوړیدلای سی.په ده پسی

لمونځ او تراویح کیدلای سی؟

﴾جواب﴿: که دا حافظ صاحب صالح او نیک وی او دمعاشرت

سره محفوظ وی نو بیا په ده پسی لمونځ کول جائز دی.ولدالزنا کیدل

دی کی موجب کراهیت نه دی.(کفایت المفتی ۳/۶۴)

## ﴾دحمل ساقطونکی والا امامت﴿

﴾سوال﴿: یو سړی دپیغلی انجلی سره نکاح و کړه دوی میاشتی

تشخیص و کړی نو معلومه سوه چی منکوحی ته د پنځو میاشتو حمل

څخه لری.نو ده دا حمل درسوائی باعث و گڼړی او قصدائی حمل سا

.او بیائی ورسره دوباره نکاح و کړه نو اوس په ده پسی لمو نځ صح

که نه؟

﴾جواب﴿: په دی مسئوله صورت کی نکاح س

کړی نو د دوباره نکاح کولو حاجت نه وو

صحبت کول ښه کارنه دی.خو که دا ح



وی نو ده له دوضع حمل څخه مخکښې همبستری صحیح ده.قصداً حمل
ساقطول په دی صورت کی سخته گناه ده. که دعلم باوجودئی داسی کار
و کړی نو توبه ایستل ورته لازمی ده دزړه ده اخلاص. که دی توبه و نه باسی
نو ده امامت کول جائز نه دی.په دی شرط چی بل اهل او لائق امام نه
وی.او که چی دزړه داخلاص توبه وکاړی نو بیادده په امامت کی هیڅ
مضائقه نسته. (فتاوی محمودیه ۲/۹۲)

## ﴾دپیښنگی لمونځ کونکی امامت﴿

﴾سوال﴿: زیدا کثره دلما نځه کولو عادت نلری او چی پر پیښ سی بیائی
کوی.خو په ده کی دامامت کولو لیاقت سته.نو که دمحلی یا کلی خلقو ورته
تنخواه مقرره کړه او امام ئی کړی او هغه ددی لالچ په وجه امام جوړ سی
او دلمانځه پر کولو باندی مجبور سی نو په ده پسی لمونځ کول جائز دی او که
نه؟ که دی پخپله بی له ت ... دی لپاره چی خلق به زماعزت
ک ...
... لمو نځ جائز دی او

تنخواه.په دواړو حالاتو کی دده امامت صحیح دی.

پاته سودده دنیت سوال.نوهغه خوالله تعالیٰ ته معلوم دی.یوازی په قیاس باندی دهغه ونیت ته که څوک فاسلووائی نوداخبره به نه وی جائزه.(فتاوی محمودیه ۲/۹۳)

## ﴿دنوی مسلمانی سوی ښځی دزوی امامت﴾

﴿سوال﴾ که یوهلک چی نوی مسلمان سوی دی اوپه شرعی احکامو باندی خبردی نوآیاد ده امامت صحیح دی او که نه؟

﴿جواب﴾:دده امامت بلاکراهیته صحیح دی.او کم څوک چی وائی چی د ده امامت صحیح نه دی نوهغه پرغلطی باندی دی اودهغه په مسئله سم سر نه دی خلاص سوی.(فتاوی دارالعلوم ۳/۲۰۳ بحواله رد المختار ۱/۵۳۰)

## ﴿دهغه سړی امامت چی لاس یاپښه ئی پری سوی وی﴾

﴿سوال﴾:دزیدچپه لاس په مُتی کی پری سوی دی.دی دقرآن مجید قاری دی او د سُنت مطابق دی ادعلمِ فقهی څخه خبردی.آیاپه ده پسی لمو نځ کول کیږی؟ که کیږی نوپه لمانځه کی ئی کراهیت سته او که نه؟

﴿جواب﴾:چونکه ددارقم معذوره څخه طبعاًخلق نفرت کوی اوبله داچی دهغه لپاره طهارت کامله ممکنه نه ده.په دی وجه به دبل جوړ امام په موجودگی کی دده امامت مکروه تنزیهی وی.که دده څخه بل څوک زیات دامامت مستحق



موجودنه وی نوبیاڅه کراهیت نسته.(احسن الفتاوی ۳/۲۶۹ بحواله رد المختار ۱/۵۲۵)

## ﴿دنرښځی امامت﴾

﴿سوال﴾:دنرښځی امامت ښه دی او که نه؟د مقتدیانوبه وریسی لمونځ کیږی او که نه ؟اونرښځی دسنت اوشریعت تابعداری کونکی دی.لمونځ گزاره اودینداره وی اوږیره ئی هم پری ایښې وی

﴿جواب﴾:که په دی نرښځی کی دنارینوُوعلامتونه زیات وی نوبیادده امامت صحیح دی او که دزنانهؤ علامی زیاتی پکښې وی یادواړی علامی کی برابری وی نوبیادده امامت صحیح نه دی.بلکه بیادی د همجنسوامام هم نسی جوړیدلای.البته په ده پسی دښځو اقتداء صحیح ده(احسن الفتاوی ۳/۲۷۶ بحواله ردالمختار ۱/۵۴۰)

## ﴿دهغه سړی امامت څوک چی دنامه څخه لاندی بیښتان نه خروی﴾

﴿سوال﴾:که یو سړی دنامه څخه لاندی بیښتان دڅه کمزوری په وجه نه خروی نوپه ده پسی لمونځ کیږی او که نه؟

﴿جواب﴾:دده لمونځ صحیح دی اوپه ده پسی لمونځ کیږی.(فتاوی دارالعلوم ۳/۱۷۷) که معقول عُذر نه ؤونوهره جمعه ئی صفاکول پکارده اود څلویښتو

ورڅخه زيات سائل مکروه تحريمي دي.(رد المحتار کتاب الخطر والاباحة ۵/۵۸م)

## ﴿دهغه چاامامت چې په خُوله کې ئې يوغاښ هم نه وي﴾

**﴿سوال﴾**: دچاچې په خُوله کې يوغاښ هم نه وي اوددې په وجه سره د حروفو اداء سم نسي کولای يادچاد پښو گوتې آخوااودې خواته وي اودده څخه بده سړې پيدا کيږي نو آيادده امامت صحيح دی او که؟

**﴿جواب﴾**: په دې دواړوصورتو کې ئې امامت صحيح دی خوبهتره خبره داده چې امام يوداسې سړی جوړ سي چې دهغه څخه مقتديان نفرت نه کوي اودغه صالح امام د لمانځه دمسائلو څخه خبروي.اوقرآن مجيدهم ښه ويلای سي.(فتاوی دارالعلوم ۱/۱۲۲ بحواله ردالمحتار ۱/۵۲۰ باب الامامت)

## ﴿دمصنوعي غاښوو الاامامت﴾

کم سړي چې مصنوعي غاښونه ا يښي وي نوفقهاؤ دهغه امامت صحيح بللی دی. که غاښونه دسپنوزرووه.بلکه امام محمدرحمه الله تعالیٰ عليه خود سروزروغاښونه لگول هم صحيح بللي دي.(فتاوی دارالعلوم ۳/۲۰۶ بحواله ردالمحتار ۵/۳۸ کتاب الخطر)

## ﴿دقاتل امامت﴾

**﴿سوال﴾**: دقاتل څخه قصاص نه دی اخيستل سوی اونه دمقتول ورثاء ده ته



بخښنه کړې ده قاتل فقط توبه کښلې ده.اوحقوق العبادذمه واری اوس هم دده په ذمه باندې باقي پاته ده.نو آيادی په دې وجه سره فاسق بلل کيږي او که نه اوپه ده پسې لمونځ مکروه کيږي او که نه؟

**﴿جواب﴾**: په دُرمختار کې راغلي دي چې دقاتل صرف توبه اواستغفار کافي اوبس نه دي ترڅوچې دمقتول ميراث خورو ودته بخښنه نه وي کړې. (ردالمحتار ۱/۳۸۴ باب الجنايات)

ددې خبرې څخه دابښکاره سوه چې دقتل گناه به نه بخښل کيږي اودی به فاسق وي اولمونځ ورپسې مکروه وي.(فتاوی دارالعلوم ۳/۱۱۲)

## ﴿دښځو امام جوړيدل﴾

دامامت دصحت لپاره يوشرط دامام په حقيقي معنیٰ کې سړيتوب دی.په دې وجه دښځو دخنثیٰ مشکل(يعني د داسي نرښځي چې دهغه جنس نه متعين کيږي)امام جوړيدل چې په هغوی پسې دې سړي مقتديان ولاړوي نه دي صحيح.خو که ښځې ئې مقتدياني وي نودهغوی دامامت لپاره سړيتوب شرط نه دی بلکه که يوه ښځه هم دځان په رقم دنوروښځو يادنرښځيانو امامه جوړه سي نوصحيح ده.( کتاب الفقه ۱/۶۵۳)

## ﴿دامام دعاقل کيدو شرط﴾

دامامت دصحت په شرائطو کې يوشرط عقل هم دی.نوپه دې وجه

به دفاتر العقل امامت چې که دهغه دجنون شخه افاقه کیږی نو صحیح به نه وی البته کـه دده حالت داسـی وی چی کله افاقه کیږی او کـله ورته جنون لاحق کیږی نودافاقی په حالت کی به دده امامت صحیح وی او دجنون په وخت کی به دده امامت باالاتفاق سره باطل وی. (کتاب الفقه ۱/ ۶۵۴)

## ﴿دخوانده سړی اقتداء په ناخوانده پسی﴾

دامامت دصحیح کیدلویوشرط دادی چی که مقتدی تعلیم یافته وی نوپکارده چی امام هم تعلیم یافته وی.دناخوانده سړی خوانده لره لمونځ ورکول نه دی صحیح.اودخوانند کیدوشرط دادی چیپ امام دی ددومره قرأت شخه خبروی چی دهغه شخه بغیرلمونځ نه صحیح کیږی.نو که دیوه کلی امام ددومره قرأت شخه خبروی چی دهغه شخه بغیرلمونځ نه کیږی نو تعلیم یافته له جائزده چی په ده پسی لمونځ وکړی خو کـه هغه اُمّی ؤواو قطعاًناخوانده ؤونوهغه ته دچل ځان په رقم دناخوانندؤ د امامت شخه ماسولی وبل چاته امامت نه سی ورکولای.ددی شخه قطع نظرچی ځوک خوانده سړی ذدوی سره په جمع کی شریک سته او که نه.(کتاب الفقه ۱/ ۶۵۴)

## ﴿دامامت لپاره دروغتیا شرط﴾

دامامت دصحت لپاره یوشرط دادی چی امام به په شخه مرض با معذوری کی مبتلانه وی(یعنی یوداسی مرض نوی ورته پیښ چی دهغه



شماره په شرعی معذوری کی راځی)مثلاًسُلسل البول(یعنی دمچا ړو شاځکی تلل) په دائـمی پیـچش بـانـدی اخته کیدل،دهواء مسلسل خارجیدل او د پزی شخه همیشه وینی تلل.نو که امام په دی امراضو کی په یوه باندی اخته وی نـوهـغـه تـه د داسی کسانوامامت ورکول صحیح نه دی په چاکی چی د دغوامراضو شخه یو مرض نه وی ورپیښ.البته دده په رقم په یومرض باندی اخته وی نودداسی معذورانوامامت ورته صحیح دی.

او کـه مـرضـونـه مـختلف وی مثلاًیو دمچا ړومـریـض وی اودبل پُزه وینی کیږی نوپه دویٔ کی دیوبل لپاره امام جوړیدل نه کارنه دی.(کتاب الفقه ۶۵۵/۱)

## ﴿دعدت په دوران کی چی نکاح تړی دهغه امامت﴾

**﴿سوال﴾**:یوسړی دعدت په ورځو کی نکاح و تړله نودده امامت ځرنګه دی؟

**﴿جواب﴾**:کـه دعـلم باوجودئی داسی نکاح تړلـی وی نودنکاح تړلو والا ټول خلق ګناه ګاره دی دټولوپر ذمه علی الاعلان توبه ایستل لازمی ده.که د دغه سړی شخه بهتربل ځوک دامامت لائق بل سړی موجود وی نوبیادذغه سړی امامت مکروه دی.بل سړی امام جوړول پکاردی ترهغه وخته پوری چی ترځوده توبه نه وی کښلي.(فتاوی محمودیه ۲/ ۱۱۴)

## ﴿په گروي مځکه ور کول او بیا پر هغه باندې فائده اخیستل د داسې سړي امامت﴾

دشامي نومی کتاب داتحقیق دی چې په گروباندې مځکه ور کونکي اوبیاپرهغه باندې فائده اخیستل په سود کې راځي.ولې چې داپه کُلُّ قَرْضٍ جَرَّ نَفْعاً فَهُوَ رِبٰواً کې داخل دی.نو کم سړي چې ددې حرام فعل مرتکب وي نوهغه عاصي اوفاسق دی اوپه فاسق پسې لمونځ مکروه دی (فتاوی دار العلوم۳/۱۱۱ بحو اله ردالمختار ۱/۵۳۳)

مرتهن ته دمرهون د مځکې څخه فائده اخیستل صحیح نه ده. او دا کارپه سود کې راځيٰ اوداسې کار کونکي سړی امام جوړول ممنوع دی. په داسې سړي پسې اګرچه لمونځ صحیح دی سره د کراهیت خودې باید مستقل امام نسې جوړ.(فتاوی دارالعلوم۳/۱۲۹ بحو اله ردالمختار ۱/۵۲۳باب الامامت)

## ﴿دعاق سوی امامت﴾

په حدیث شریف کې راځي صَلُّوا خَلْفَ كُلِّ بِرٍّ وَفَاجِرٍ نوعاق هم مسلمان دی کافرنه دي په دې وجه په ده پسې لمونځ صحیح دی خومکروه دی ځکه چې دی دمور اوپلاریااُستادڅخه عاق سوی دی اوعاق سوی سړی فاسق دی.اودفاسق امامت مکروه دی.(فتاوی دارالعلوم۳/۱۲۲ بحو اله ردالمختار ۱/۵۲۳)



﴿دعاق ترجمه داسې کیدلای سی. ع :معنی عیب ویونکی. ا :اذی یاتکلیف رسونکی. ق قهر کونکی.دادری شیان پر خپل پلار اومور یا اُستاد باندې کول حرام دي او کونکی ئې فاسق بلل کیږي.الله پاک دې مو ږد داسې کارو څخه وساتي چې دهغه په وجه دالله بندګان راڅخه ناراضه کیږي . آمین(مترجم)﴾

## ﴿دکم وزن تلُونکی(په ترازو کې کمونکی)امامت﴾

داسې سړي داامام جوړولو لائق نه دی. دکم وزن په وخت کې دده امامت اوپه ده پسې لمونځ کول مکروه دي. کلي یامحلي والاله پکاردي چې دی ژرترژره لرې کړي اودده پرځای باندې یو لائق سړی ودروي(فتاوی دارالعلوم۳/۱۷۱ بحو اله رد المختار ۱/۵۲۵)

## ﴿څوک چې سپین بیښته کاږي دهغه امامت﴾

﴿سوال﴾:امام صاحب دخپلې ږیرې څخه سپین بیښتان کاږي نوپه ده پسې لمونځ صحیح دی او که نه؟

﴿جواب﴾:داکاربنه نه دی مکروه دی اولمونځ په ده پسې صحیح دی. خوداکارده له نه دی پکار(فتاوی دارالعلوم۳/۱۲۲ بحو اله ابوداؤدکتاب الترغیب ص ۱۹۶)

## ﴿دګناه کبیره کونکي امامت﴾

﴿سوال﴾:یوامام صاحب دی هغه اکثره دخلقوسره کښینی اوغیبت کوی دغه رنګ په ډیروخبروکی دده څخه درواغ هم ثابت سوی دی.په پاکه ښځه پوری ئی دزناتهمت هم لګولی دی اونوری هم ناقابل ذکرخبری پکښی وی نو داسی سړی فاسق ویلای سواو که نه ؟دده لپاره شرعی حکم څه دی؟

﴿جواب﴾:غیبت کول په پاک دامنه ښځه باندی تهمت لګول وغیره ګناه کبیره دی دداسی کاروو الا فاسق دی اودفاسق امامت مکروه تحریمی دی که بل څوک دده څخه بهتره سړی موجودوی نوددی پورته ذکرسوی امورو مرتکب‌سړی تـه امامت ورکول پکارنه دی.بلکه بل څوک دی امام جوړکړي. که دا سړی په رشتیاتوبه و کښله اودخپلوداسی حرکتو څخه ځان وساتی نوبیابه دده امامت مکروه نه وی.بهتره اوغوره خبره داده چی دامذکور شخص په مسئله باندی پوه سی اودفتنی اندیښنه ورته په ګوته سی اوتوبه پر وکاږی کـه دی ئی نـه منـی اودفتنی اندیښنه وی نـودی دی دامامت څخه معزول کړی اوبل څوک بهتره سړی دی امام مقررسی.

اوکه دده پـه ایستلو کی فتنه اومشکلات وی نوبیادی په بل مسجد کی لمونځ وکړی(فتاوی محمودیه ۱۰٦/۲ بحواله ردالمختار ۱/۸۸۴)

## ﴿چی ځولی یالنګوټه نه پرسرکوی دهغه امامت﴾

﴿سوال﴾:یوامام صاحب دی چی پرسرباندی ئی نه ځولی سته او نه لنګوټه



صرف یو پټوپرسرباندی اچوی.نویومقتدی وامام صاحب ته وویل چی په داسی حالت کی لمونځ کول مکروه دی.امام صاحب ورته وویل چی زه خوداسی کم که دچاخو ښه وی نولمونځ دی وکړی اوکه ئی نه وی خوښه نونه دی کوی.ددی په باره کی شرعی حکم څه دی؟

﴿جواب﴾:که ځولی یا لنګوټه موجوده وی نوسرتورسرلمونځ ورکوی نوداکارمکروه دی.په معززه کالو کی لمونځ ورکول پکاردی.البته په دی مذکوره مسئله کی فرض اداکیږی.(فتاوی محمودیه ۱۱۴/۲)

## ﴿دجُنب امامت﴾

﴿سوال﴾:که څوک دناپاکی یعنی دجنابت په وخت کی امامت وکړی نو دهغه لپاره څه حکم دی؟

﴿جواب﴾:داسړی دګناه کبیره مرتکب دی اود ټولولمونځ ګزارولمو نځ ورتباه کوی. که په داسی کولو دلمانځه سپکاوی کول غواړی نو بیاخودا کار کول کفردی.(فتاوی محمودیه ۷٦/۲ بحواله شامی ۱/۵۵)

## ﴿دجاهل اوغله امامت﴾

﴿سوال﴾:زیدامام دی.اودی صرف حافظ دی اوهغه هم غلط وائی اوکه موقع ورته پیداسی نوغلاهم کوی.غسّالی ئی پیشه ده،په نکاح سابقه باندی دمسله نکاح کوی کـه پـه مسجدکی وی نو لمونځ‌کوی ورنـه بیـائی قضارا

کرځوي.دقوم بدځنی کیږي دده په باره کې شرعي حکم څه دی؟

﴿جواب﴾:که په ده کې دااُمورموجودوي اودده څخه بهتره دامامت اهل سړي موجودوي نوبیا دی امام جوړول مکروه تحریمیء دی که دا سړي ددې کارو څخه توبه وکاږي اوآئنده داسې ممنوعات نه کوي او قرآن مجیدصحیح وائي نوبیادده امامت منع نه دی.(فتاوی محمودیه ۲/۱۰۵)

## ﴿دفیشن پرسته امامت﴾

﴿سوال﴾:یوداسې سړی چې دسر ویښتان ئې انګریزي ماډل جوړ کړې وي ږیره ئې خشخشي وي کالي ئې دنیکانوپه رقم نه وي نودداسې سړي دخپله خانه دامامت لپاره پرمصلّي باندې دریدل څنګه دي؟

﴿جواب﴾:دکم سړي جامه،و ویښته،ږیره اونور کارونه دشرعیت څخه خلاف وي نودی نه پخپله مصلّي ته درمخه کیږي اونه دې نوردې امام کوي.چونکه داسړي فاسق دی نوفاسق په مکمل طورباندې امام جوړول مکروه تحریمي دی.

که حافظ(امام)دخپلو قبیحو حرکتونو دپرېښودولوعهدوکړي نودی د تراویحوامام جوړیدلای سي اوکه انکاروکړي نوبیاداسې سړي دامامت د منصب لائق نه دی.اوهم ددغه اعمالوپه وجه خلق دده څخه ناراضه کیږي نودهغوي ناراضګي په حقه ده.په حدیث شریف کې راځي که "په شرعي



سبب لمونځ ګزاره دامام څخه ناراضه سي نوپه داسې امام پسې مقبول لمونځ نه کیږي"(یعنې دلمانځه فرضیت خوبه اداسي خو افضلیت به ئې نه وي)

که حافظ صاحب دخپل ژوندبدلولولپاره تیارسي نوبیادی امام جوړیدای سي.کنې داسې نه چې دامامت دغه مقدسه منصب به پاته وي.

(فتاوی رحیمیه ص۲۱۷ بحواله دُرمختارمع شامی ۱/۵۲۲)

## ﴿دفاسق امامت﴾

﴿سوال﴾:زیدپه یو ځای کې امامت کوي.دی په قبیحه افعالوکې شرکت کوي مثلاً ناچ کتل،غزلي،سینماته تلل ، ګنده او فحش مسخري کول په دین اودینداره پوري خندل اونورداسې کارونه کوي.آیاداسې سړی امام جوړیدلای سي اوپه ده پسې اقتداء کول جائز دي اوکه نه؟

﴿جواب﴾:داسې سړی امام جوړول جائزنه دی(فتاوی محمودیه ۲/ ۷۷ بحواله شامی ۱/۳۷۶)

## ﴿دکوچنی هلک امامت﴾

صحیح قول دادی چې په نابالغه پسې دبالغ اقتداء نه ده صحیح.په نفل لمنځوکې هم.که ئې داسې وکړه نواحتیاطاًدې نفل بیرته راو ګرځوي.

(فتاوی محمودیه ۲/۷۷)

دحنفیه ؤ صحیح مذهب دادی چې دنابالغه دبالغانولپاره په فرض او

نفلوپه هیڅ یوه کې هم نه صحیح کیږي.(فتاوی دارالعلوم ۳/۱۱۵)نوتراویح هم په نابالغه پسې نه صحیح کیږي هم دغه دحنفیه ؤ صحیح مذهب دی.اوبالغ د پنځلسو کالو والاشمارل کیږي.په دې شرط چې ددې شخصه دمخه پرده باندې دبلوغ څه نښانه یاعلامه نه وي ښکاره سوې.نوپه دې وجه چې ترڅو هلک بالغ سوی نه وي نوامام ئې مه جوړوي.

هسې په نفلو کې دکوچني شخه دې قرآن اوري.یعني دغه هلک دې دنفلونيت وتړي اوودې دریږي اواوریدونکې دې هم داسې کښیني قرآن کریم دې اوري.اوکله چې دپنځلسو کالوسونوبیادې دتراویحو امام جوړ کړي.(رد المختار ۵/۵۳۹)

دکوچني تراویح صرف نفل دي اودبالغ داسُنت مؤکده دي.بله دا چې د کوچني په نفل شروع کولوسره پرهغه باندې نه واجبیږي اوپربالغ باندې دنفلو شروع کیدووروسته پوره کیدل ئې پرواجب دي اوکه ئې ونکړه نوبیائې قضارا وړل واجبه ده.نودکوچني لمونځ ضعیف دی اودبالغ لمونځ قوي دی.نوداقانون دی چې دقوي بناء پرکمزوري یاضعیف باندې نه کیږي.نوځکه داجائز نه ده.(امدادالفتاوی ۱/۳۶۱)

نابالغه دتراویحولپاره امام جوړول صحیح نه دی.البته که دې دنا بالغو امامت وکړي نوبیا جائز دی. (فتاوی محمودیه ۲/۳۵۰)



## ﴿دامامت مستحق﴾

﴿سوال﴾:داختر دلمانځه په باره کې په مسلمانانو کې اختلاف پیداسوبعضي وائي چې داخترلمونځ به هم داامام ورکوي اوبعضي بیا وائي چې داخترلمونځ به حافظ صاحب ورکوي.داختر لمونځ امام صاحب ورکړي اوحافظ صاحب نیت مات کړي اوولاړي.په دې صورت کې څه پکاردي؟

﴿جواب﴾:په مسلمانانو کې تفرقه بدشي دی.لمونځ په حافظ پسې هم کیږي اوپه امام صاحب پسې هم کیږي.اانیت بنه شي نه دی.کم څوک چې د نفسا نیت په وجه دجماعت شخه جلاکیږي اونیت ماتوي. اودلمانځه شخه ځي نودا کاربنه نه دی اوگناه گاره سو.توبه دې وکاږي.اوټولو خلقوته په خپل مابین کې په اتفاق سره پاته کیدل پکاردي اوپه اتفاق سره امام درول پکاردي.(فتاوی دارالعلوم ۳/۹۲)(په قاعده کې عالم د امامت لپاره حقداره دی او بهتره خبره خوداده چې په متفقه طوردامام انتخاب وسي.چې څه اختلاف پې داسې درأی دکثرت طرف ته فیصله کول پکار دي.اوبیا ټولوته داکثریت رأیه منل پکاردي)

## ﴿په امامت کې دشیخ اودسیدتخصیص﴾

لمونځ په هرچا پسې کیږي دشیخ اودسید په دې کې څه تخصیص نسته.دشیخ اودسیدلمونځ په غیرد شیخ اودسیدپسې کیږي.په امامت کې

صرف دامام لیاقت پکاری دی .دنسب په دی کی څه قید نسته.کم سړی چی دلمانځه دمسئلو څخه خبروی اومتقی وی هم هغه دامامت لائق دی اوزیات حقداره ئی دی.داکه سیّلوی اوکه پیر دُکانداروی اوکه ریړهی والا.ځوان وی اوکه سپین ږیری غرض چی دهری پیشی والاوی هغه لائق دامامت دی خوتقوی اوعلم ئی شرط دی.(فتاوی دارالعلوم ۳/۲۱۹ بحواله رد مختار)

## دیو امام څخه چی بعضی مقتدیان ناراضه وی دهغه امامت

دفقهی په کتابو کی راغلی دی چی که چیری په امام کی یو څه نقص اوتاوان ؤونو دمقتدیانو دناراضګی اثر په لمانځه کی هیڅ شی نه دی.دامام لمونځ بی له څه کراهیت څخه صحیح دی او ګناه ټوله پرمقتدیانو باندی ده.اوکه چیری په امام کی یو څه شرعی نقص وی اومقتدیان دهغه نقص په وجه ناخوښه وی نوبیاپرامام باندی مؤاخذه سته اودده امام جوړیدل مکروه دی.-

که په امام کی څه خلل یانقص نه وی اومقتدیان بی له څه وجهی څخه دده څخه ناراضه وی نوددی ګناه به پرمقتدیانو باندی وی.(فتاوی دارالعلوم ۳/۱۰۲)

## دناصالح اولاد والاپلار امامت

که یو سړی په خپله صالح وی اودامامت لائق وی نو دهغه په امامت



کی څه کراهیت نسته بلکه دی اَحَقُّ بِالْاِمَامَةِ دی.(داولادپه ناصالحی سره دده په تقوی کی هیڅ فرق نه راځی) (فتاوی دار العلوم ۳/ ۱۰۲)

## دکم امام ښځه چی لنګ وهی دهغه امامت

دپیش امام په امامت کی په دی باندی څه کراهیت نسته.(فتاوی دارالعلوم ۳/۳۰۳)

## دلوردواوده پرسرباندی دپیسو اخیستونکی امامت

دانجلئی موراوپلارته دانجلی دخاوندیائی دخاوند دموراوپلار څخه روپی اخیستل فقهاؤرشوت اوحرام ګرځولی دی.نو داروپی واپسول ضروری دی.اوتوبه ددی داده چی روپی واپس کړی.که ئی روپی واپس نه کړی نو دی فاسق پاته کیږی اودفاسق امامت مکروه دی.اوفاسق لائق د امامت نه دی.په ده پسی اودده په معاوننو پسی لمونځ اګرچه صحیح کیږی خومکروه دی.(فتاوی دارالعلوم ۳/۲۶۰ بحواله ردالمختار ۱/۵۲۳ باب الامامت)

## دمسجدمال چی پرخپل ځان باندی مصرف کوی د داسی سړی امامت

(دمسجدمال پرخپل ځان باندی مصرف ول )داصریح خیانت دی اودده په ذمه باندی ضمان لازم دی.اوکه دا امام توبه ونه کړی نوبیا ددی امام ساتل نه دی پکار .دی دامامت لائق نه دی .(فتاوی دارالعلوم ۳/ ۱۷۸ بحواله

ردالمختار ۱/۵۲۳ باب الامامت)

## ﴿دشیعه امامت﴾

په شیعه پسې دسُنّي لمونځ نه کیږي.چونکه ددوی بعض عقائدداسې دي چې هغه دکفرموجب گرځي.نوپه دې وجه په دې صورت کې د لمانځه نه صحیح کیدل یقیني امردی.او که شیعه غالي نه وي نوبیاهم احتیاط په کاردی ځکه چې عقیده خومخفي امردی اوشیخینوته بشکنځل او پر عائشة رضی الله تعالیٰ عنهاباندې دتهمت لګولوځخه یوشیعه هم ندی خلاص.سبُّ شیخین د بعضوعلماؤپه نیز کفردی.اوقذف عائشة رضی الله تعالیٰ عنهابالاتفاق کفردی. (فتاویٰ دارالعلوم ۳/ ۳۰۲)

## ﴿دموچي،دغسال اودنوي مسلمان سوي امامت﴾

په موچي ، غسّال اوپه نوي مسلمان سوي پسې لمو نځ کول صحیح دي.اوصرف په دې وجه ددوي په امامت کې څه کراهیت نسته.البته که څه بله وجه دکراهیت وه نوبیالمونځ مکروه دی.او دامامت لپاره غوره هغه سړی دی څوک چې دلمانځه دمسائلوڅخه خبروي.اوقرآن مجید صحیح ویلای سي اوصالح وي (فتاوی دارالعلوم ۳/ ۱۴۸ بحواله ردالمختار ۱/ ۵۴۱ باب الامامت)

مړي ته غسل ورکول اوتجهیزاوتکفین په امامت کې څه خرابي نه



راولي.خوداهل محله والاپاره دا ډیره دشرم ځای اوبده خبره ده چې هغوی دامام څخه داسې کاراخلي.کم چې دوی ئې پخپله نه خوښوي.بلکه د ذلّت کارئې بولي.دوی ته پکاردي چې دمړي په غسل اونوروامورو کې په خپله هم کارواخلي که نه په پوهیږي نودامام څخه دې زده کړي.داکاردې دذلّت کارنه بولي. ځکه چې مړي ته غسل ورکول فرض کفائي دی.اود ثواب کاردی.(فتاویٰ محمودیه ۷/۴۲)

## ﴿دغیرمقلدامامت﴾

﴿**سوال**﴾:په غیرمقلدپسې دمقلدمقتدی لمونځ کیږي او که نه؟

﴿**جواب**﴾: که غیرمقلدامام ددې امررعایت کوي چې دغې خبرې د لمانځه په معامله کې نه داخلوي په کوموچې دحنفي لمو نځ مکروه کیږي یا فاسد یږي اومتعصب نه وي نوبیادده اقتداء صحیح ده. (فتاوی دارالعلوم ۳/ ۳۰۸ بحواله دُرمختار ۱/ ۵۲۶)

## ﴿دمنکرین حدیث امامت﴾

قادیاني فرقه چې دحدیثو څخه منکره ده کافره ده.په هغوي پسې لمونځ کول صحیح نه دي.اودغیرمقلدوفرقه کمه چې ځان ته اهل حدیث وائي هغوي هم په حقیقت کې اهل حدیث نه دي په دوي پسې هم لمو نځ مکروه دي.امام یوعالم اوحنفي سړی مقررول پکاردي (د منکرینو دحدیث

امامت هم صحیح نه دی علماؤ ددوی د کافر کیدو فتوی ور کړی ده )(فتاوی دارالعلوم ۳/ ۱۴۸ بحواله عالمگیری باب الامامت ج ۱/صفحه۸۳ )

## ﴿دغزل ویونکی ښځی دخاوندامامت﴾

که امام دخپلو ښځوپه منع کولو قادروی او بیائی هم نه منع کوی نود غه خلق گنهکاره دی د دوئ په ذمه واجب دی چی ښځی دناشائشته او د ناجائزو افعالو څخه منع کړی. که چیری دی پرمنع کولوباندی قادرنه وی او یائی منع کوی خوښځی ئی نه منی نوبیاپه ده دښځوددی افعالو گناه نسته اوپه دی صورت کی د ده په امامت کی هم په دی خبره کراهیت نه راځی.البته که دقدرت باوجودئی نه منع کوی بلکه دښځود غه ذکر کړی سوی افعال(اتڼ، غزلی اونور)خوښوی نوبیاددده امامت منع دی په دی شرط چی څوک بل سړی دده څخه بهتره وی که په مقاطعه کولوئی دده داصلاح توقع وی نومقاطعه کول مناسب دی.(فتاوی محمودیه ۷/۵۹)

## ﴿دنامحرموڅخه پرده نه کوی دهغه ښځی دمیړه امامت﴾

**﴿سوال﴾**(۱)دزیدښځه دخپل ماما او د اکا د زوی څخه پرده نکوی بلکه مخ ته ورله راځی.خوزیدئی منع کوی لیکن تشددنه پرکوی نوپرزیدباندی دښځی دپردی دنه کولو گناه کیږی او که نه؟اوپه زیدپسی لمونځ کول څنگه ...لته خومره تشددپکاردی او که تشددو کړی نودفسادانديښنه وی



نوبیاتشدد و کړی او که نه؟

(۲)که دزید ښځه اودزید وروړعمردوا ړه په یوه کور کی اُوسیږی اوپه بل کورکی ئی اُوسیلوامکان نه وی نوپه داسی صورت کی به دپردی څه صورت وی که دزیدښځی دعمر څخه پرده و نکړه نوددی گناه به پرعَمر باندی وی او که نه؟

**﴿جواب ۱﴾**:داکادزوی اودماماذوی څخه شرعاًپرده کول ضروری ده. که دزید ښځه پرده نه ځنی کوی نوبیاهغه گناه گاره ده اوزیدلره پکار دی چی دا منع کړی که ئی نه کړی منع نوبیابه زید گنهکاره وی.زیدلته په تشددکولواوپه پرده نه کولوخپله ښځه وهل شرعاًصحیح دی. که دناقابل برداشت فسادخیال وی ورته اوپه دغه وجه زیدخپلی ښځی باندی تشدد نه کوی اوحال داچی د تشددبغیرهغه ئی نه منی نوشرعاًپرزیدباندی څه گناه نسته.په اول صورت کی دزیدامامت مکروه دی کله چی دهغه څخه بل څوک بهتره امامت والاموجود وی اوپه دوئم صورت کی دزیدامامت مکروه نه دی.

**﴿جواب ۲﴾**پرده په هرحال کی ضروری ده که دفسادانديښنه وی او که نه خوشریعت چی کمی موقعی مستثنیٰ کړی دی صرف هغه مستثنیٰ دی.

که ئی وس کیدی نودزیدپرذمه باندی دخپلی ښځی لپاره دیو قو

مستقل مکان انتظام کول لازمی دی چی هلته پکښې دده وررور اونور هیڅوک نه اُوسی. که دی ورته دپردی کولوپاره ووائی اودزید ښځه د کوشش اوفهم باوجودپرده نکوی نودهغی گناه به پرزیدباندی نه وی. (فتاوی محمودیه ۹۹/۲ بحواله خیریه ص:۱۱۸)

## ﴿دچاښځه چی بی پرده وی دهغه امامت﴾

که امام خپله ښځه دبی پردگی څخه منع کوی اود هغی ددی بی پردگی دکاره څخه راضی نه وی خو ښځه دخاوند خبره نه اوری نوپه امام ددی مؤاخذه نسته اودهغه امامت جائزدی.(کفایت المفتی ۸۰/۳)

که دگی امام ښځه په شرعی طورباندی پرده نکوی اودبی پردگی څخه نه منع کیږی بلکه دهغی ددغه کاره څخه راضی دی اودهغه بهتره یو بل سړی دامامت لپاره موجوددی نوپه داسی حال کی بیادغه امام ته امامت ورکول مکروه دی څکه چی داسی سړی شرعاًفاسق دی که داامام ئی دبی پردگی څخه منع کوی اوښځه ئی نه منی نوامامت ئی بیانه دی مکروه.
**(فتاوی محمودیه ۴۵/۷)**

## ﴿دکم امام لوڼری چی بی پردی وی دهغه امامت﴾

**﴿سوال﴾**: چاچی خپلی ځوانی لوڼری دنامحرمه سره پری ایښې وی نو که دته خلق وای چی دالوڼری دی منع کړه لیکن دی دخولی څخه د گمراهی



الفاظ اداکوی دداسی سړی امامت څرنگه دی؟

**﴿جواب﴾**: دنامحرمه کسانو څخه پرده کول فرض ده اودنامحرمه سره خلوت حرام دی نوکه دغه سړی په دی قادروی چی خپلی لوڼری دنامحرمه کسانوڅخه په پرده کولومجبوره کړی خوبیاهم داسی نه کوی نودی گنهگاره دی.ده ته ددی کارڅخه منع کیدل پکاردی.اوکه دی د دغه کارڅخه منع نه سواودده څخه ماسوٰی بل څوک موجودوونودده امامت بیامکروه دی.اوبل څوک چی اهل وی امام جوړول پکاردی.اوخاص کرکله چی دی دخلقود پوهیدلوروسته د گمراهی الفاظ هم اداء کوی په داسی حالت کی دده د امامت څخه زیات احترازکول پکاردی. گویا چی ترڅودغه الفاظ متعین نه وی نوڅه حکم نسی پرکیدلای.**(فتاوی محمودیه ۱۰۱/۲)**

## ﴿په ضدکی دطلاق ورکولوالاامامت﴾

**﴿سوال﴾**: یوسړی دی ډیرښه مُلااوعالم دی خو ښځی ته ئی صرف په دی وجه طلاق ورکړی دی چی دهغه اخښې دهغه وخورته طلاق ورکړی.یعنی دده خورد هغه سره وه اودهغه خورددده سره وه.نوچی اول هغه ددی عالم خورته طلاق ورکړی نومولوی صاحب هم په ضددخپل اخښې خورته چی د ده مایندینه ده طلاق ورکړی.او بیا ددی څخه علاوه مهراوخرچ هم نه ور کوی نوپه دی ظالم پسی لمونځ کول او دسلام طعام معامله ساتل ور سره

ښنکه دی؟

**﴿جواب﴾**: کم خلق چی په داسی ظلم کی یاددی ښخه په غټ ظلم کی (د حقوق الله یادحقوق العبادپه تلف کولو کی) اخته نه وی هغوی لره پکارده چی داسی سړی دخپل لمانځه لپاره نه خو ښوی. دسلام او طعام او نورو شیانو د پریښولو ښخه ښه داده چی هغه پر اصلاح باندی آماده سی. کنی نن صباخو د سلام او طعام دپر یښولو ښخه دچا اصلاح نه کیږی بلکه ډیر وخت په طبیعت کی ضد پیدا کیږی په خاص ډول بیا اهل علم حضرات د کم چا چی دیو صاحب نسبت بزرګ سره اصلاحی تعلق نه وی او هغه د اصلاح د فکر ښخه خارج وی. (فتاوی محمودیه ۷۸/۲)

## ﴿دهغه سړی امامت چی رکوع او سُجده ژر کوی﴾

**﴿سوال﴾**: یو امام چی دومره چابکی کوی چی مقتدی دری واره تسبیح هم نسی پسی ویلای نو په داسی امام پسی لمونځ کول څرنګه دی؟

**﴿جواب﴾**: دومره ژر کول مکروه دی. امام ته دمقتدیانو رعایت کول هم پکاردی. چی هغوی هم کم ازکم دری واره تسبیح په سُجده او رُکوع کی ووائی. (فتاوی محمودیه ج ۱/۴۵)

## ﴿دبدعتی امامت﴾

**﴿سوال﴾**: آیا په بدعتی پسی لمونځ کول جائز دی او که نه؟ آیا داسی سړی دامامت دی؟



**﴿جواب﴾**: دنن صبا مبتدعیه فرقو عقائد د شرک وحدته رسیدلی دی په دی وجه په دوی پسی لمونځ نه کیږی. البته که یو بدعتی مشرکانه عقائدنه لری بلکه موحلوی صرف د دریمی ښلویښتمی په رقم عقائدو کی مبتلاوی دهغه امامت مکروه تحریمی دی.

که چاته صحیح العقیده امام پیدا سی نو په بدعتی پسی دی لمونځ نه کوی. او که نه ؤ ونو هم په ده پسی دی اقتداء کوی. جُمُعه دی نه پر یږدی. د بدعتی په اقتداء کی اګرچه لمونځ مکروه تحریمی دی خو واجب الاعاده نه دی (یعنی دسره بیرته را ګرځول نه غواړی) دا دداسی بدعتی حکم دی ښوک چی مشرک نه وی. (احسن الفتاوی ۲۹۰/۳)

## ﴿دمودودی عقیده لرونکی امامت﴾

**﴿سوال﴾**: دجماعت اسلامی سره تعلق لرونکی حافظ صاحب دښالخواقرآن اوریدل جائز دی او که نه؟

**﴿جواب﴾**: دداسی سړی امامت مکروه تحریمی دی که چیری په فرائضو کی صحیح العقیده امام میسر نسی نو بیا په ده پسی لمونځ وکړی. لیکن تراویح په هر حال کی دده په اقتداء کی مه کوی. که صحیح امام نسی پیدا نو بیائی یوازی وکړی. (احسن الفتاوی ج(۳)ص: ۲۹۱)

## ﴿دخضاب لګونکی امامت﴾

**﴿سوال﴾**: کم حافظ چی پر ږیره باندی خضاب لګوی آیا هغه دتراویح لمونځ ور کولای سی؟

**﴿جواب﴾**: ښوک چی توره خضاب لګوی هغه فاسق دی نو په دی وجه په داسی امام پسی تروایح کول مکروه دی تحریمی دی (صحیح قول دا دی چی مکروه تنزیهی دی) که صالح امام پیدا نسی نو تراویح خانته باید وکړی (احسن الفتاوی ۲۹۴/۳)

## ﴿چې سینماته ځی دهغه امامت﴾

﴿سوال﴾: یو حافظ صاحب یا مولوی صاحب یاامام صاحب دی چې سینمااو ډرامو کتو ډیرشوقین دی اواتڼ (ناچ)اوغزلی هم په شوق ګوری ... ده پسی لمونځ کول څنګه دی؟

﴿جواب﴾: کم سړی چې سینما ګوری او داتڼ(ناچ)اوغزلو په محفلو ... شرکت کوی داسیسړی دامامت لائق اوو ړنه دی اوپه ده پسی لم... مکروه دی.

که توبه و نکړی اوامامت هم نه پرېږدی نوبیاپه بل مسجدکی لم... کول پکاردی. که بل مسجدنه وی نودیوازی کولوپر ځای دی په ده پسی لمونځوکړی ځکه چی دجمعی اهمیت اوتأکیدډیردی. (فتاوی رحیمیه ۳۴۸بحواله شامی ۱/ ۵۲۵باب الامامت)

## ﴿دتی وی TV(تلویزون) کتونکی امامت﴾

﴿سوال﴾: آیاد داسی امام اقتداء کول جائزدی څوک چی تلویزون (ټ... وی TV) ګوری؟

﴿جواب﴾: تلویزون کتل ناجائزدی اود داسی امام اقتداء کول مکر... تحریمی ده خولمونځ پسی کیږی.راګرځول ئی ضروری نه دی. (احسن الفتاوی ۳/۲۸۸)



## ﴿دچاکره چی شرعی پرده نه وی دهغه امامت﴾

﴿سوال﴾: که دامام صاحب ښځه پرده نکوی نودهغه امامت جائزدی اوکه نه؟

﴿جواب﴾: دچاکره چی دشرعی پردی اهتمام نه وی نوهغه فاسق دی.دده امام جوړېدل جائزنه دی.دده امامت مکروه تحریمی دی.(احسن الفتاوی ۳/۲۸۹)

که امام خپله ښځه دبی پردګی څخه منع کوی اوددی کاره څخه راضی نه وی خو ښځه ئی خبره نه منی نوپرامام باندی ددی خبری مؤاخذه نشته اودده امامت جائزدی(کفایت المفتی ۳/۸۰)

## ﴿دخصِّی امامت﴾

﴿سوال﴾: کم سړی چی خصِّی سوی وی دهغه امامت جائز دی او که نه؟

﴿جواب﴾: دخصِّی څخه طبعاًلږغوندی انقباض محسو سیږی په دی وجه دده امامت مکروه تنزیهی دی. که چیری دده څخه بهتره سړی نه سی پیدانوبیادده امامت مکروه نه دی.(احسن الفتاوی ۳/۲۸٦)

## ﴿دهیجړا امامت﴾

هیجړاکه عالم باعمل وی اونور ټول جاهلان پسی ولاړ وی نود ده امامت جائزدی.(فتاوی دارالعلوم ۳/۷۳ ابحواله ردالمختار ۱/۵۲۳ باب الامامت)

## «دهغه سړی امامت چاچی نسل بندی کړی وی»

مکرم ومحترم جناب مفتیان کرام دارالعلوم بعدسلام مسنون ددی لاندینیوسوالونوجوابونه مدلل راکړې!

«سوال ۱» په هغه امام پسی لمونځ کول مکروه تنزیهی دی که تحریمی چاچی نسل بندی کړی وی؟

«سوال ۲» که دده نسل بندی په زورسره کړه سوی وی نوبیادده څه حکم دی؟

«سوال ۳» امام پخپله خونسل بندی نه ده کړی خودده بنځی کړی ده نو په دی امام پسی لمونځ صحیح کیږی او که نه؟

«الجواب (۱)» دتوبی څخه دمخه مکروه تحریمی دی اودتوبی څخه وروسته بی له څه کراهیته صحیح دی.(۲)صحیح کیږی(۳)په دواړو صورتونوکی دتوبی اود استغفار څخه وروسته دده امامت بی له څه کراهیته صحیح دی. والله اعلم

الجواب الصحیح

کفیل الرحمن نشاط عثمانی
نائب مفتی دارالعلوم دیوبند

محمد ظفیر الدین غفرله
مفتی دارالعلوم دیوبند

۱۴۰۸/۱/۹ ھج



دنسبندی باوجودسړی بیاهم سړی باقی پاته وی.دی دبنځی مُخنث په حکم کی نه دا خلیږی نوپه دی وجه دامامت په مسئله کی هم دده احکام دعامو خلقوپه رقم دی. دده امامت جائزدی. که دده نسبندی جبراً کړی سوی وه نوبیاخودده هیڅ قصورهم نسته پکښې.اوکه ده پخپله په رضاپه رُغبت باندی کړی وی نو بیاخو موجب دفسق دی.

دتوبی اوندامت وروسته به ئی کراهیت ختم سی ترڅوچی توبه گارسوی نه وی نوچونکه نسبندی ناجائزه ده اوپه خلق الله کی تغیراوستل دی نوپه دی وجه به دی فاسق شی نو ځکه به ئی امامت مکروه وی.

(جدیدفقهی مسائل ص:۵۹)

## «دلیونی امامت»

یو سړی داسی لیونی یادیوانه وی چی یووخت هم ورته هوش نه راځی اوپه داسی حالت کی جمعه ورکوی نوبیاپه ده پسی لمو نځ جائزندی اوکه دلمانځه ورکولوپه وخت کی په هوش کی وی نوبیاپه ده پسی لمونځ صحیح دی. (فتاوی دارالعلوم ۳/ ۳۰۱بحواله شامی ۱/ ۲۰۴)

## «چی په جُماع باندی قادرنه وی دهغه امامت»

«سوال»: مخنث امام کیدلای نسی خوکه یو سړی دمرضونوپه وجه نا قابل جماع سی نو داسړی امام کیدای سی او که نه؟اوچی هم دغه سړی په ډله کی

دصاحب کمال اوفضل والاوی؟

﴿**جواب**﴾:دعنین یعنی نامرده امامت صحیح دی.دنامرده حکم دخنثی په رقم ندی نوپه دی وجه دداسی معذورامامت صحیح دی (فتاوی دارالعلوم ۳/۲۰۰)

هم پردغه ځای پـه حاشیه کی داعبارت هم موجود دی چی دخنثی امامت خوپه دی وجه نه دی صحیح چی په هغه کی د ښځی کیدلواحتمال وی اوپه عنین (نامرده ) کی داقسمه احتمال نه وی.

## ﴿دوهم په وجه به امامت پریږدی او که نه﴾

﴿**سوال**﴾:زه ددیره وخته راهسی امامت کوم اوس داسی وهم غوندی کم چی کیدای سی اودس بـه می مات سوی وی په دی وجه می په زړه کی دا تقاضاده چی امامت پریږدم ددی شرعاً څه حکم دی؟

﴿**جواب**﴾:پـه وهم باندی هیڅ شـی بـنـدیدل نه دی پکار.اوداسی وسوسی دفع کول پکاردی.اوهروخت ولاحول ولاقوة الابالله اکثرویل پکاردی او نه ځوځـی دی داودس دماتیدلویقین نه وی ترهغوپوری څه تـوجه نه ده پکار او خپل امامت کول پکاردی.

پـه حـدیث شریف کی داسی راغلی دی چی تر څود حدث(دهواء خـارجـیـلو) آوازنـه وی راغـلـی اوياپه بدبوئی نه وی پوه سوی نوترهغوپوری اودس نه ماتیږی(فتاوی دارالعلوم ۳/۱۲۸ بحواله مشکوة (باب مایجب الوضوء) کم لمنځونه چی



ده ورکړی دی کـه په هغه کښې ئـی دهواء خارجیلو یقین نه وی نو لمنځونه دټولواداسول.(فتاوی دارالعلوم ۳/۳۳۴)

## ﴿دسوزاک والاسړی امامت﴾

﴿**سوال**﴾:یو امام صاحب ته دسوزاک مرض ورلویدلی دی داغونه هروقت پرېښکاری په داسی امام پسی لمونځ کیږی او که نه؟

﴿**جواب**﴾:که داسی سړی دعذروحدته رسیدلی وی اومعذوره سوی وی چی هر وخت داغونه پرېښکاره کیږی یووخت هم دده لمونځ خالی نه وی نو په ده پسی به د جوړ وخلقولمونځ صحیح نه وي دَی دِی دامامت څخه لری کړه سی.(فتاوی دارالعلوم ۳/۳۰۹ بحواله ردالمختار ۱/۵۴۱ باب الامامت)

## ﴿دمسافر امامت﴾

﴿**سوال**﴾:که مسافرامام څلور رکعته پوره کړی نوهغه مقتدی چی مسافر نه وی دهغه لمونځ به په ده پسی صحیح وی او که نه؟

﴿**جواب**﴾:دامـام آخـری دوه رکـعته نفل دی اودمقتدی آخری دوه رکعته فرض دی اودفرض کولو والاقتداء په نفل کولو والاپسی نه صحیح کیږی په دی وجه دمقتدیانولمونځ نه دی صحیح.البته که مقتدی آخردوه رکعته دخپله ځانه څخه وکړی اودامام واقتداء تـه ونه ګوری نوبیاددی مقتدی لمونځ صحیح دی.(احسن الفتاوی ۳/۳۶۴)

## چې انعامي بانډونه ساتي دهغه امامت

**سوال**: آیاداسې سړی د امامت لائق دی څوک چې پرائزبانډونه ساتي اوپرهغه باندی دانعام رقم اخلي او انعام دسود دپیسو څخه تقسیمیږی؟

**جواب**: انعامي بانډونه په دی وجه حرام دی چې دا دسود اودخمار مجموعه ده نوپه دی وجه انعامي بانډونه چې څوک ساتي هغه فاسق دی او دده امامت مکروه تحریمي دی.(احسن الفتاوی ۲۹۷/۳)

## چې دنامحرموښځوسره لاس ملاووی دهغه امامت

**سوال**: کم سړی چې نامحرمو ښځوسره لا س ملاووی دهغه امامت څرنګه دی؟

**جواب**: دنامحرموښځوسره لاس ملاوولو والا فاسق دی نوپه دی وجه دده امامت مکروه تحریمي دی.(احسن الفتاوی ۲۹۹/۳)

## دبینک دملازم امامت

**سوال**: داوقاف داماما نودچاچې ډیره دیوه موټ څخه کمه وی اود بینک دملازم حفاظواوقاریانوچې ډیره کوچنی کوی نود دوئ په امامت کې لمونځ کیږی اوکه نه؟

**جواب**: داډیره خورپه بینک کې دملازمت په وجه سودخورهم دی په



دی وجه ددغه دوو ګناؤه څخه هریوه ګناه فسق موجب ګرځي نوپه دی وجه دده امامت مکروه تحریمي دی.(احسن الفتاوی ۳۰۳/۳)

## دابرص (فِسُ) والااودجزامي امامت

په چاچې ابرص وی اوابرص هم معمولي نه وی بلکه په ټول بدن کې ئې خپورسوی وی اوخلق نفرت ځنی کوی نودی امام جوړول مکروه دی.

دجذامي درجه خویه دی معامله کې دابرص څخه هم زیاته ده چې جذام که خپورسوی وی په بدن کې اوهروخت راڅاڅي نوبیادداسې سړی ومسجد ته حاضریدل منع دی.دده څخه جَمْعَه هم ساقطه ده اودی امام هم نسي کیدای.(فتاوی محمودیه ۸۲/۲ ردالمختار ۳۷۸/۱ فتاوی هندیه ۴۴۱/۱)

## دسودخورامامت

**سوال**: په سودخورپسی اوپه ډیره خریونکې پسی لمونځ کیږی اوکه نه؟ اوددوی امام جوړیدل ښه دی اوکه نه؟

**جواب**: داسې سړی امام جوړول مکروه تحریمي دی په ده پسې لمونځ مکروه دی.(فتاوی محمودیه ۸۲/۲ ردالمختار ۳۸۶/۱)

## چې مکروهات کوی دهغه امامت

**سوال**: دمکروهاتوپه مرتکب پسی اوچې دسُنتواومستحباتوپابندی نه

ساتي نو په هغه پسې لمونځ کول څنګه دي؟

﴿جواب﴾: مکروه دي. (فتاوی محموديه ۲/۸۴ طحاوي علی مراقي الفلاح ص: ۲۴۵ طبع مصر)

## ﴿چې قوالي اوري دهغه امامت﴾

که بل څوک دامامت لائق وي نو هغه سړی چې قوالي اوري او په عُرس کې شراکت کوي دهغه امام جوړېدل نه دي پکار (فتاوی محموديه ۲/۸۴ طحاوي علی مراقي الفلاح ص: ۲۴۵ طبع مصر)

## ﴿چې پخواني نسل ئې خراب وي دهغه امامت﴾

دداسې سړي که اولادنيک وي او دامامت قابل وي مثلاً داکه عالم وي او دشريعت دمسائلو څخه خبروي نو په ده پسې بلاکراهيته لمونځ کول جائز دي بلکه افضل دي. (فتاوی دارالعلوم ۳/۱۳۰ غنية المستملي ص: ۳۵۱)

## ﴿دمُتهم بالزناامامت﴾

﴿سوال﴾: يوه ښځه ده او هغه پخپله خوله اقرار کوي چې فلانکي امام زما سره زنا کړې ده او هغه امام انکار کوي په دې کې شرعاً څه حکم دی؟

﴿جواب﴾: دښځې په وينا په سړي باندې دزناثبوت نسي راتلای او دده په امامت کې څه کراهيت نسته (فتاوی دارالعلوم ۱۱۸/) (ترڅو چې څلورشاهدان نوی تير سوی)



## ﴿دولدالزنايا حرام زاده امامت﴾

دولدالزنايا حرام زاده چونکه پلارنه وي نو په دې وجه ده ته صحيح تربيت نه وي حاصل سوی دده څخه طبعاً خلق انقباض کوي په دې وجه دده امامت مکروه تنزيهي دی.

او که په ده کې داد کراهيت علت نه وي بلکه دی عالم او متقي انسان وي نو بيا کراهيت هم باقي نه پاته کيږي. بلکه ترنوروده امامت افضل دی که چيرې تر ده په عِلم کې بالانه وُو. او هم داحکم دنورودينې منصَبُونو هم دی.

(احسن الفتاوی ۳/ ۲۹۵ ردالمحتار ۱/ ۵۲۳)

## ﴿چې دډمې کره ئې پرورش سوی وي دهغه امامت﴾

﴿سوال﴾: ديو کوچني موراوپلار په کوچني والي کې وفات سوه دي ديو جت يا ډم (ډم يا جت هغه څوک دي چې ډول ډنګوي) کره لوی سواو دغه هلک قرآن شريف ووائي آيادی امامت کولی سي او که نه؟

﴿جواب﴾: هغه هلک چې دډم ياجت کره لوی سوی وي او دده قرآن مجيد زده وي او دلمانځه په مسائلو باندې خبروي نو دده امامت بلاکراهيته صحيح دی. (فتاوی دارالعلوم ۳/۱۹۱)



## ﴿دتوبه کښونکی زناکاره امامت﴾

کـه زانـي تـوبه وکاړی اودتیـروبـلـو افعالو څخهتـوبه وکړی اواکثره لمونځ ګزاره دده دامامت څخه خـوشحاله وی نودده امام جوړيدل ښه دی اودده په امامت کښې څه کراهیت نسته(فتاوی دارالعلوم ۳/۱۹۳ بحواله مشکوة شریف باب التوبه ص:۲۰۶)

## ﴿دغیرشادی شده امامت﴾

﴿**سوال**﴾:بـعـض خـلق وائي چی دچانکاح نه وی سوی دهغه امامت جائزنه دی اوامـام صـاحـب وائي چی زه ددین علم حاصلوم چی فارغ سم نونکاح به کوم دچاخبره صحیح ده،آیاچی واده ئی نه وی کړی هغه امامت کولی سی او که نه؟

﴿**جواب**﴾:دامـامت دصحت لپاره دامام واده کول شرط نه دی که دی دپا کبـازی ژونـدتیروی اوددین په علم حاصلولو کی مشغول وی اودتعلیم دپوره کولو څخه وروسته وائي ی واده به وکړم نوبده خبره خونده. کم خلق چی ور پسـی سـوی دی اوامامت ئی ناجائزه ګڼـلـی دی هـغه خلق زیاد تی کوی ک اوس ئی واده وکړی او تعلیم ځنی پاته سونوهغه ته به خومره غټ نقصان ور سیږی البتـه که دتعلیم پوره کیلوتروخته دده په ګناه کی داخته کیلو اندیښنه وی نومقتدیانوته پکاردی چی دده دواده انتظام ورته وکړی.(فتاوی رحیمیه ۶/ ۲۵۱)



که پـرده بـانـدی دشهوت غلبه نه وی نودده په ذمه واده ضروری نه دی اوپه دی دده په امامت کښې خلل نه راځی البته که پرده باندی دشهو ت غلبه وی اوخیالات ئی پراګنده وی نودده پرځای دی بیایوداسی سړی امام جوړول افضل دی دچاچی ښځه وی اوخیالات ئی پراګنده نه وی بلکه هغه ته اطمینان حاصل وی اودامامت اهلیت هم لری.(فتاوی محمودیه جلد۷/۴۰)

## ﴿هـغه امام چی واده ئی کړی وی خـویـو کال کورته نه وی تللی دهغه حکم﴾

﴿**سوال**﴾:زمونږامـام صـاحـب د دوه نیمو کالو راهسی امامت کوی اودواده ئی دری کاله کیږی یـو کال ئی وسوچی کورته نه دی تللی.یو څوجاهل ناخوا نـده کسـان وائـی چـی کـم امام صاحب چی واده ئی کړی وی اوتـریـوه کاله پوری کورته ولا ړنسـی نـودهـغـه امامت جائزنه وی ،دلته په دی وجه خلق په جنګ کی سره لوېږی صحیح خبره څرنګه ده؟

﴿**جواب**﴾:چاچی واده کړی وی هغه دی دخپلی ښځی درضایاخوښې او اجازت څخه بغیردخلورومیاشتوڅخه زیاته موده لری نه تیروی.(شامی ۷/ ۳۵۷)

ددغه امام صاحب ښځی به ورته اجازه کړی وی اودنوکری په وجه په ده پسی په لمانځه کولو کښې څه شبه کول نه ده پکار.(فتاوی رحیمیه ۴/ ۳۵۷)

## ﴿چی پائیڅی ئی تربجلکو لاندی وی دهغه امامت﴾

﴿سوال﴾:دامام صاحب دپرتا که پائیڅی تربجلکو لاندی وی چی کله سُجدی له ځی نوپائیڅی په دوارو لاسوباندی پورته کوی اوبیاسُجدی له ځی داکارکول په لمانځه کی په هررکعت کی جاری وی مونږلمونځ پسی وکړواوکه نه؟

﴿جواب﴾:دغه امام صاحب ته داسی کارنه دی کول پکار ځکه چی اول خودلمانځه څخه دباندی هم دبجلکو څخه لاندی پرتوګ راکښته کول حرام او منع دی.داامردامام دفسق موجب دی.اوپه فاسق پسی لمونځ مکروه دی اودتوبی څخه بغیرداسی فاسق امام کول مکروه دی.

اوبل په لمانځه کی داسی حرکت باربارنه دی کول پکار. ځکه چی په دی کی هم کراهیت دی اوپه بعضوصورتونوکی دلمانځه دفاسدیدلوبیره هم ده.بهرحال دغه امام صاحب له دغه کارڅخه منع کول پکاردی.اوکه منع نه سی نودی معزول کول پکاردی.اوکه په دی موقدرت نه وی نوپه ده پسی لمونځ کول جائزدی اودجمعی ثواب حاصلیږی.(فتاوی دارالعلوم ۱۷/۳ ا بحواله ردالمختارباب الامامت ۱/ ۵۲۳)

## ﴿چی پتلون اغوندی دهغه امامت﴾

﴿سوال﴾:یوسړی دی چی پتلون اغوندی او لمونځ ورکوی نودده څه حکم



دی؟لمونځ ئی کیږی اوکه نه؟

﴿جواب﴾:لمونځ ئی کیږی.(احسن الفتاوی ۳۱۸/۳)

## ﴿چی پراخ پرتوګ اغوندی دهغه امامت﴾

په ده پسی لمونځ صحیح دی ځکه چی دپراخی پائیجامی اغوستل ښه دی.(فتاوی دارالعلوم ۱۳۰/۳)

## ﴿چی لنګ اغوندی او امامت کوی﴾

﴿سوال﴾:لنګ وهل ،دوه پریزی خولی اوپورته پائجامه اغوستل او امامت کول ښه دی اوکه نه؟

﴿جواب﴾:که دعورت ستر(پرده پوشی)ئی پوره وی نولمونځ ئی کیږی خو بهتره خبره داده چی لنګوټه وتړی اوپه شرعی جامه کی لمونځ ورکړی.

(فتاوی دارالعلوم ۱۲۶/۳ ا بحواله ردمختار ۱/ ۳۷۴ باب الشروط الصلوة).

## ﴿په قمیص پرتوګ کی امامت کول﴾

په لمانځه کی چی بجلکی یا پښې په اکثره اوقاتوکی پو ټیږی.سړی ته دودمره اُوږدپرتوګ اغوستل ناجائزدی دکم څخه چی دهغه دپا ئیڅوپه وجه دده بجلکی پوټیږی.اوپه دی باندی لمونځ مکروه کیږی.په لمانځه کی پښې یا بجلکی مه پوټوی.قمیص اغوستل جائزدی خوکُرته افضله ده.هر

ځای چې د صُلحاؤ جامه وی هغه اختیارول پکاردی. خصوصاًدلمانځه اود امامت په وخت کی.(فتاوی محمودیه ۷/۷۲)

## ﴿چې قرأت صحیح نه اداکوی دهغه امامت﴾

**﴿سوال﴾**: کم سړی چې په صفاصحت سره نسی ویلای یعنی "**الف**" او "ع"،"ت"او"ط"، "س"او"ص"او"ح"او"ه"او"ض،ذ،ز،"اود"ظ"فرق نسی کولای. نوداسی امام اقتداء کول ښه دی او که نه؟او که دکلی بعض خلق داسی امام وساتی نوددی گناه به پر امام وی او که پر کلی والاباندی؟

**﴿جواب﴾**: که دده څخه بل څوک بهتروی اوپه مسائلوباندی خبروی، قرآن صحیح ویلای سی دسُنتوتابع وی نودی امام نه دی جوړول پکاراود امام دامامتی څخه لری کول پکاردی.په دی شرط چې فتنه نه وی پکښې. که دده څخه بل څوک بهترنه وی بلکه ټول خلق دده په رقم ویونکی وی نوبیادده په امامت کی څه نقصان نسته.خودحروفوتصحیح بهرحال لازمه ده.اوددی تارک گنهکاردی.(فتاوی محمودیه ۲/۷۴بحواله درمختارمع ردالمحتار ۱/۳۷۷)

## ﴿درشوت خورامامت﴾

که د ده څخه بل څوک بهترامام موجودوی نورشوت خوردی نه امام کوی.دده امامت مکروه دی.(فتاوی محمودیه ۲/۷۴بحواله در مختار ردالمحتار ۱/۳۷۷)



## ﴿دتارک جماعت امامت﴾

**﴿سوال﴾**:دتارکِ جماعت امامت په جُمُعه اواخترونوکی ښه دی او که نه ؟

**﴿جواب﴾**:کم سړی چې بغیرد څه عُذر څخه دجَمُعی لمونځ پرېښولو عادی وی دهغه امام جوړول مکروه تحریمی دی.دمجبوری په حالت کی چې په ده پسی کم لمونځ وسی دهغه اعاده به لازمه نه وی.(فتاوی محمودیه ۲/۷۰بحواله درمختارمع ردالمحتار ۱/ ۳۷۱ اوپه حواله دشامی ۱/۳۸۶)

## ﴿داهل حدیث امامت﴾

**﴿سوال﴾**:په اهل حدیث پسی لمونځ کیږی او که نه؟آیادی په اهل سُنت والجماعت کی شامل دی او که نه؟

**﴿جواب﴾**:که دغه(په نامه)اهل حدیث أئمه مجتهدینوته بنکنځل اوبد ورَدُنه وائی اوپه فرائضواوواجباتو کی دامام ابوحنیفه رحمه الله تعالی علیه د مسلک رعایت کوی اولمونځ ورکوی نوپه ده پسی لمونځ صحیح دی. او دارقم اهل حدیث‌هم داهل السنت والجماعت څخه جلانه دی کم چې په دیانتداری سره په احادیثوباندی عمل کوی اودفقهاؤسره بغض اوعنادنه ساتی. (فتاوی محمودیه ۲/ ۷۱)



## ﴿درضاخانی امامت﴾

**﴿سوال﴾**: یوسړی دی چی دبریلوی خیالاتووالا دی دده داعقیده ده چی رسول الله ﷺ په غیبوعالم دی اومختارکل دی.دغه رنګ هغه یعنی نبی کریم ﷺ هر ځای حاضراوناظروی.داسړی په مسجدونو کی امامت هم ورکوی.نویه دی سړی پسی لمونځ کول ښه دی او که نه؟

**﴿جواب﴾**: داصفت دالله تعالیٰ لپاره خاص دی.داصفت دحضورصلی الله علیه وسلم لپاره منل هسی بی دلیله خبره ده.بلکه دنص هم خلاف ده.نویه دی وجه داسی سړی امام جوړول پکارنه دی. ټولولمونځ کونکوته پکارده چی داسی سړی له امامت څخه لری کړی اوبل څوک صحیح العقیده اود طهارت اودلمانځه په مسئلوباندی خبرمتبع سُنت سړی امام جوړکړی.که داسی ونکړی نوداټول کسان به ګنهګاران وی.(فتاوی محمودیه ۲/ ۷۹بحواله در مختارمع ردالمختار ۱/ ۳۷۶)

## ﴿چی کمونسټ ګوندته رایه ورکوی دهغه امامت﴾

**﴿سوال﴾**(۱)دکمونیسټ ګوندغړی جوړیدل اوددی ګوندد کامیابولولپاره رایه ورکول جائزدی او که نه؟اوپه رایه ورکولووالاپسی لمونځ کول څنګه دی؟

(۲)زیدد کمونیسټ ګوندلخوادښارګوټی دممبرلپاره په ټاکونوکی



اُمیدوارټاکل سوی دی دده حمایت کونکی هم سته په ده پسی لمونځ کول څرنګه دی؟

(۳)بکرحافظ قرآن دی ده دکمونیسټ ګونداُمیدواردکامیابی لپاره رایه هم ورکړی ده په ده پسی تراویح کول څرنګه دی؟

**﴿جواب﴾**: کمونیسټ یادهرئ دخپل اصل په اعتبارسره داسلام دمذهب څخه خلاف دی او د دوی ددی بنیادی نظرئیی په پابندی د دوی دګوند ممبرجوړیدل دمذهب اسلام مخالفت کول دی.دوی ته رأیه ورکول داسلام دمذهب مخالف ته رأیه ورکول دی.چی څوک په دی خبره باندی پوهیږی اوعقیده پرلری اوممبرئی جوړیږی اودوی ته رأیه ورکوی نودده امام جوړول صحیح نه دی.بعضِ کسان داسلام دمعتقدواوپابندوخلقوڅخه وی اود بعضوسیاسی اووقتی مصلحتونویه وجه باندی کمونیسټ اویادیوبل اسلام مخالفه ګوندپرټکټ باندی ممبرجوړیږی اودهغوی ددی مصلحت په وړاندی ریشتونی اوپاخه مسلمانان دوئ ته رأیه ورکوی دداسی کسانوبیا دا حکم نه دی.خوپه دی عادت یوه مخالف ګوندته ترقی ملاویږی اواقتدارورته په لاس راځی نویه دی وجه به ډیرخلقوته غلط فهمی پیداسی اوکمونیسټ ګوندبه داسلام خلاف نه بلکه موافق ګوندبه ئی وبلی.اوچی کله دامبران سی نوهغه کمونیسټ چاچی دوئ واقعی کمونیسټ کنټرل اورأیه ئی

ورکړي وه په دوئ به خپلي مطالبي اوغو ښتني پوره کوي کم چې داسلام څخه خلاف وي.

اوکه چیري دوي په دې کي کوشش نه کوي نورأیه چې څوک ورکړي هغوي بـه دوئ غدّاراومکارو ګنړي اوداغداري او مګاري به ټوله د اسلام پرسر باندي وتپل سی او آئنده به نه په داسي ممبرڅوک اعتماد وکړي اونه به په داسي رأيه ورکونکي باندي کم چې دکمونیسټ ګوندپه آسره باندي یومسلمان ممبر کوي.

داعمل یوشریف ریشتوني سړي هیڅیري هم نسي کولای ولي چي په خپله مسلمان وي اونوري دُنیاته دهوکه ورکوي اوخپل ځان کمونیسټ ښکاره کوي اورأیه حاصلوي داسي سړي به خپل ضمیرډیرزیات ملامت کوي په اسلام کي دداسي کارکولوهیڅ اجازت نسته.

دنبي کریم ﷺ په خدمت کي چي به کم خلق حاضریدل اود ضمیرخلاف به کول دهغوي ډیرسخت مُذمّت په قرآن اوحدیث کي راغلي دی په داسي خلقودنبي کریم ﷺ اعتمادنه ؤاونه دخپل ګوندااعتمادؤ. د دوئ داحال ؤچي ﴿مُذَبْذَبِيْنَ بَيْنَ ذٰلِکَ لَاإِلٰى هٰؤُلَاءِ وَلَاإِلٰى هٰؤُلَاءِ﴾(فتاوٰی محمودیه ۸/۲)



## ﴿دغیرمعززه سړي امامت﴾

﴿سوال﴾: آیاامامت حق دمعززقوم څخه بغیربل قوم ته کیدای سی اوکه نه؟ بعض خلق وائي چي صرف ددي لاندي قومونوسړي لمونځ وروکولای سی یعني سیّد، شیخ، مغل، پښتون او نورقومونوته دامامت حق نه دی حاصل. ددي شرعاًڅه حکم دی؟

﴿جواب﴾: دامامت حق وهرهغه مسلمان ته دی څوک چي دامام کیلو اهلیت لري بیاچي څومره دامامت لوازمات مثلاًدعلم مسائل، تجوید اوقرأت اوصلاح اوتقوٰی په چا کښي زیاته وي نوهغه به هغومره اَوْلٰی اواَلْیَقُ بالْإِمَامَتُ تصور کیږي (یعني څوک چي په ټولو کي زیات مُستحق وي)په دُرمختاراو نورو کتابونوکي دی چي په چاکي دامامت اهلیت وي هغه امام کیدی سی. په دي حکم کي ټول قومونه اوهنرمندخلق برابردی. (ددي څخه ټول پیشه ور خلق اودهري برادري والاخلق مُرااددي. البته که په شرافت علمي وغیره سره یکښي شرافت نسبي(خانداني)هم وي مثلاًهغه قریشي وي، سیّد وي یاشیخ وي، یاانصاري وي نودی به افضل وي دنوروحضراتوپه مقابله کي نودابه دثُمَّ اَلْاَشْرَفُ نَسَباًحامل وي.

ددي خلقوداقول چي دسیّداوشیخ اونورو څخه بغیرپه بل چاپسي لمونځ نه کیږي بالکل غلط دی. که هرقوم وي که سیّدوي که شیخ وي که

پښتون وی او که نور څه بلاوی او که کنړی باف وی یاحجام (سلمانی)وغیره وی،خوچی دامامت لائق وی نولمونځ ورپسی کیږی اوپه دوئ کی به دزیات علم اوتقوٰی اوقرأت والاته ترجیح ورکولی سی او که چیری ټول په علم او تقوٰی اوقرأت کی برابروی نوکم چی دنسب په اعتبارسره ډیراشرف وی هغه به دامامت زیات مستحق وی.

دالله تعالی په نیززیات بزرګ هغه څوک دی څوک چی زیات متقی وی لکه څرنګه چی په قرآن کریم کی دی."اِنَّ اَکْرَمَکُمْ عِنْدَاللهِ اَتْقَاکُمْ" خو که دسعادت اوتقوٰی سره سره پکښې شرافت نسبی هم وی نوبیا خونُوْرٌعَلٰی نُوْرٍدی.لیکن هیڅ مسلمان اوپیشه وَرته په سپکه سترګه کتل صحیح نه دی."اِنَّمَاالْمُؤْمِنُوْنَ اِخْوَةٌ"(عام مسلمانان وروڼه دی)دی پردغه موقع باندی ضروریه یادولری .(فتاوٰی دارالعلوم ۳/۱۸۱بحواله ردالمختار ۱/۵۲۱باب الامامت)

## ﴿چی په صحیح مخارجو قادر نه وی دهغه امامت﴾

**﴿سوال﴾**:یو امام صاحب دی چی ښه ویونکی نه دی او ډیر حرفونه ئی داسی دی چی سړی نه په پو هیږی.دڅو کسانو خیال دی چی دی دامامت څخه لری کړی.دی وائی چی مانوی غابنونه ایښې دی په دی وجه دتارو څخه آوازدروندغوندوی.



اوپاته سوپه حروفو دنه پوهیدوسوال نوامام صاحب وائی چی په ټولو حروفو پوهیږم نوآیاد ده امامت صحیح دی او که نه؟

**﴿جواب﴾**:که داامام حروف په صحیح طریقه دخپلو مخارجو څخه ادا کوی اونژدی خلق کم چی داقرأت اَوری په دی حروفو ښه پوهیږی نودا امام د امامت زیات حقداردی هم دغه امام برقراره ساتل پکاردی.او که دحروفو په صحیح طریقه د مخارجو دادکولوقدرت نه لری.که داطاقت نه درلودل دنوی غابنو په وجه سره وَی او که څه بله وجه وی اونژدی اوریدونکی په ټولو حروفو ښه صفانه پو هیږی او واضح ئی نه اوری نودده امامت صحیح نه دی. (احسن الفتاوٰی ۳/۳۰۲)

که قرآن مجیدداسی غلط وائی چی معنٰی ئی خرابیږی نوپه ده پسی دبالکل ناخوانده کسانودچاچی دری آیتونه هم نه وی یادلمونځ صحیح دی او که د چادری آیته صحیح په یادوی نوبیادهغوی لمونځ صحیح نه دی.یوبل صحیح ویونکی امام جوړول پکاردی چی د ټولولمونځ سم سی .(فتاوٰی محمودیه ۷/۳۹)

## ﴿چی فرض ئی کړی وی اوبیادفرضو جَمُعَهٔ ورکوی﴾

مسئله داده چی چافرض کړی وی هغوی بیادفرض کونکوامام کیدای نسی که چا خپل فرض لمونځ یوازی وکړی نودهغه فرض اداء سو

اوس ئې دې نفل نسي کولای بلکه که دغه لمونځ په دويم وارو کړي نودا به نفل وي او په نفل کونکو پسې دفرض لمونځ کونکو لمونځ نه صحيح کيږي.
(فتاوی دارالعلوم ۳/۱۰۸ بحواله ردالمختار ۱/۵۴۲)

## ﴿ دداسې سړي امامت چې دچا په ذمه دقضا لمونځ وي ﴾

﴿**سوال**﴾: زيد صاحب ترتيب دی او په يو جومات کې امام دی اتفاقاً يو لمونځ ئې قضا سو د بل لمونځ دجُمعې وخت سو خو ده ددغې شخه مخکې هغه قضا لمونځ و نه کړی نو په دې وجه زيد دغه وخت وقتي لمونځ ور کړی او چې نور خلور لمنځونه تير سول هغه قضاء ئې راو کرخاوه په دې صورت کې به د مقتديانو په لمانځه کې څه فساد راځي او که نه؟

﴿**جواب**﴾: په دې صورت کې مقتديانو له پکار ده چې هغه امام ته اول د قضاء لمونځ د کولو موقع ور کړي. پر امام باندې لازم دی چې امامت دې نه کوي بلکه بل څوک دې جُمعه ور کړي. او دی چې کله قضائي لمونځ را وکرځوي نو بيا دې هلته په جُمعه کې شريک سي. دغه رنګ که زيد جُمعه ور کړه نو دده دلمانځه په رقم دمقتديانو لمونځ هم موقوف سو. که دقضاء سړی لمانځه څخه مخکې دداسې پنځو لمنځو وخت تير سو چې ددې داداء کولو په وخت کې ورته قضاء لمونځ هم په ياد وؤ. نو د ټولو لمنځونه صحيح سول. د ردالمحتار (۱/۵۲۹) دعبارت څخه معلوميږي چې امام ته به



يادېدو دمقتديانو دلمانځه يو ځانته حکم نه دی بيان سوی. ددې څخه دا ثابته سوه چې دامام په رقم به بالآخره دمقتديانو لمونځ هم صحيح سي. دقانون تبعيت تقاضاهم داده

خو امام ته داسې کول هيڅکله نه دي پکار ځکه چې که په دې دوران کې دامام يا په مقتديانو کې يو څوک مړ سو نو دقضا سوي لمنځو عذاب به د امام په غاړه وي. (احسن الفتاوی ۳/۳۰۴)

## ﴿ دکم امام په ذمه چې د وِترو قضاء وي ﴾

﴿**سوال**﴾: زيد په يو مسجد کې امام دی دشپې په آخره کې نه را کښېنستی او وتر ځني قضاء سول او په داسې وخت کې را کښېنستی چې دسهار دجُمعې وخت ؤو. نو هغه دوتر قضاء راونه ګرځوله او د سهار جَمَعَه ئې ور کړه نو د مقتديانو لمنځونه به صحيح وي او که نه؟

**جواب**: دامام په رقم دمقتديانو لمنځونه هم موقوف ؤو. دوترو دقضاء څخه وروسته چې دشپږو لمنځو وخت تير سي نو د ټولو لمنځونه به صحيح سي. په دې شرط چې ددې لمنځو په وخت به ورته قضاء لمونځ ور پياد وي. که بله ورځ ئې د لمر ختو څخه دمخه دوترو قضاء راو ړې وه نو دامام او دمقتدي د ټولو ما بينې لمنځونه به باطل سوي وي.

**خبرداری**: امام ته داسې کول روانه دي که په دې دوران کې امام مړ سو يا

يو مقتدي وفات سو نو دپاته سوي لمونځو عـذاب به دامام په غاړه وي.(احسن الفتاوی ۳/۳۰۵)

## ﴿چي سُنت مؤكده نه كوي دهغه امامت﴾

﴿سوال﴾كه دجَمُعي څخه مخكي ده سُنت مؤكده ونه كړه نو دي امام كيداى سي او كه نه؟او د مقتديانو په لمانځه كي به څه فرق راسي او كه نه؟

﴿جواب﴾:دغه سړى امام كيداى سي او دمقتديانو په لمانځه كي هيڅ فرق او خلل نه راځي.(فتاوی دارالعلوم ۳/۹٦)

په احسن الفتاوی كي دامسئله داسي ده:"امام ته دمعين وخت رعايت كول لازم دي نو پكار ده چي دجَمُعي دلمانځه څخه له مخه دسُنتو څخه ځان خلاص كړي. كه چيري ديو عُذرپه وجه تأخير راسي نو مقتديانو ته پكار ده چه امام تـه دسُنتو دادا كولو موقع ور كړي.او كـه داسي ئي ونه كړه او دسُنتو څخه بغير ئي لمونځ وكړي نوهم صحيح دى"(احسن الفتاوی ۳/۲۸٦).

## ﴿دمستقل امام حق﴾

﴿سوال﴾:يو امام صاحب يو ځاى پـه امامت باندي متعين دى،دغه ځاى بل څوك چي دهغه څخه پـه علم كي زيات وي جُمعه ور كولي سي كه نه؟كه ئي نشي كولي نو بيا دي بغير اجازه نكاح ولي تړي؟



﴿جواب﴾:داحاديثو او دفقهي درواياتو څخه داخبره ثابته ده چي كم سړى چي پـه يوه محله يا كلي كي امام وي نو دهغه په حضور كي دي دهغه دمرضي څخه خلاف بل څوك امام نه كيږي.او دنكاح خواني لپاره شارع عليه السلام قاضي نكاح خوان نه دي معلوم كړى او نه ئي مقرر كړى دى ، بلكه دا كارئي اولياؤ ته ور سپارلى دى چي دفقهي په كتابونو كي موجود دى.نو نكاح خواني پر امامت باندي قياس كول صحيح نه دي .(فتاوی دارالعلوم ۳/۸۱ بحواله ردالمختار ۱/۵۲۲ باب الامامة)

## ﴿دموجوده امام اجازت ضروري دى﴾

﴿سوال﴾:پـه يوه مسجد كي امام مقرر دى كه دده په موجودګي كي دده څخه بل څوك افضل سړى راسي نو مقتدي دامام صاحب داجازت څخه بغير دي امام كړي نو داافعل جائز دى او كه نه؟

﴿جواب﴾:دمسجدچي كم امام مقرر وي او په هغه كي دامامت اهليت وي نو هم دغه مقرر امام دبل سړي پـه نسبت دامامت زيات حقدار دى.اګر كه بل سړى افضل او اعلم او اقرأنه وي خو كه يو څو مقتديانو دغه بل سړى امام كړي نو په دي كښي هم څه باك نسته.

پـه ردالمختار(۱/۵۲۲)كي راغلي دي چي كه يو زيات فضيلت والا يو مقتدي امام كړي وي نو څه پـرواه ئـي نسته.خو بهتره داده چي دامام معين د

اجازت څخه بغیر دی امامت نه کوی.(فتاویٰ دارالعلوم ۳/۸۶)

## ﴿دنائب امام په موجودګی کی دبل چاامامت﴾

﴿سوال﴾:د کلی امام صاحب موجودنه دی خوهغه یومقتدی خپل نائب
جوړ کړی دی ددی نائب په موجودګی کی دبل چاامامت کول څنګه دی؟

﴿جواب﴾:چی نائب امام وی نوبل چا سړی تـه پـه خپله دامامت لپاره ور
وړاندی کیدل نه دی پکار.(فتاویٰ محمودیه ۲/۷۷)

## ﴿دضرورت په وخت کی بغیراجازته امام جوړول﴾

﴿سوال﴾:دسهاریادمازیګردلمانځه وخت ختمیدوته نژدی دی اوپیش اما
صاحب نسته نوکه په دی حال کی مقتدی څوک تعلیم یافته سړی مخ
کی کړونودده دامام داجازت څخه بغیرامامت کول څنګه دی؟

﴿جواب﴾:سمه ده.(فتاویٰ محمودیه ۲/۸۲)

## ﴿دامام اجازت مقتدی ته شرط نه دی﴾

﴿سوال﴾:زیددمسجدامام دی،بکرته وائی چی ته په ماپسی لمونځ مه کړ
نوبکرپه زیدپسی لمونځ کولی سی اوکه نه؟

﴿جواب﴾:پـه زیدپسی بکرلمونځ کـولی سی اولمونځ ئی صحیح دی
زیدداجازت اودحکم ضرورت نسته پکښې.بکرپرهرحال کی په هغه پس



لمونځ کـولی سـی اودزیـدداوینابی ځایـه ده اودشـریـعت خلاف ده.(فتاویٰ
دارالعلوم ۲/۱۴۸ بحواله ردالمختار ۱/۳۹۴ باب شروط الصلوٰة)

## ﴿که په آخره قعده کی امام وفات سونوڅه حکم به ئی وی﴾

پـه دی صـورت کـی به لمونځ بـاطـل سـی.دوئـم واربه ئی بیرته راګرځوی.
(فتاویٰ رحیمیه ۳/۳۸ بحواله شامی ۱/۵۸۸)

## ﴿دامام شافعیؒ اتباع په اختلافی مسائلو کی﴾

﴿سوال﴾(۱)پـه شـافـعی المذهب امام پسی دحنفی المذهب مقتدی په سورة
الحج کی ددوئیمی سُجدی په وخت دتلاوت سجده کول پکاردی اوکه نه
او پـه سـورة(صٓ)کـی خـوامـام(شـافعیؒ)سُجده نه کوی نومقتدی به ئی هغه
وخت کوی که به ئی وروسته کوی اویاځنی ساقط سول؟

(۲)اودسـهـارپه وخت کی په لمانځه کـی دُعـاءقنوت ووائی اوکه نه؟ که ئی
ووائی نولمونځ خوبه ئی نه فاسدیږی؟

(۳)په اخترکی زائد تکبیرونه په شافعی المسلک امام پسی به شپږوائی یابه د
امام دمتـابـعت پـه وجه به نه(۹)وائی؟که چیری نه(۹)تکبیرونه ووائی نولمو نځ
ئی وسواوکه نه؟

(۴)که دمازیګروخت دحنیفه مسلک والوپه نزدلانه ؤوداخل سوی اوشافعی
المسلک والاخلق دمازیګرلمونځ په اول وخت کی وکړی نوحنفی ورپسی

اقتداء کولای سی او که نه که اقتداء ئی وکړه نو اعاده به ئی واجبه وی او که نه؟

﴿**جواب (١)**﴾ دامام په اقتداء کی دسورة الحج دوئیمه سُجده مقتدی ته کول پکاردی (شامی ١/٨٠١) او که دسورة (صٓ) سُجده امام و نکړی نو مقتدی ته هم نه دی کول پکار ځکه چی دسورة (صٓ) سُجده مختلف فیه ده او دامام د اتباع وجوب متفق علیه دی (شامی ١/٤٩٠) او کله چی ئی په لمانځه کی سُجده ونکړه نو بیادی وروسته هم نکوی.

﴿**جواب (٢)**﴾ مقتدی ته په داسی حالت کی چپ دریدل پکاردی. که دُعاء قنوت ووائی نو دمکروه مرتکب به سی. (دُرمختار ١/٧٠٠)

﴿**جواب (٣)**﴾ که دامام په متابعت که نهه (٩) تکبیرونه و کړی نو په لمانځه کښې ئی څه خرابی نه راځی. (شامی ١/٤٩٢)

﴿**جواب (٤)**﴾ بهتره خبره داده چی دمازیگر لمونځ دمثلینو څخه دمخه ونکړی او که ئی و کړی نو صحیح دی. (فتاوی محمودیه ٢/٩٥)

که دامام شافعیؔ مذهبی په باره کی وثوق وی چی دی دحنفی مذهب رعایت کوی نو حنفی المسلک مقتدی ته دده اقتداء جائزه ده.

که په وثوق سره ورته معلومه وی چی شافعی المذهب امام دحنفی مذهب رعایت نکوی نو دحنفی اقتداء سمه نه ده. او که درعایت او نه رعایت



دهیڅ حال ئی نه معلومیږی نو بیادده اقتداء مکروه ده. (فتاوی محمودیه ٢/٩٥)

## ﴿دشافعی او داهل حدیث امامت﴾

﴿**سوال**﴾: دحنفی مسلک والا لمونځ په اهل حدیث یاشافعی المسلک امام پسی کیدای سی او که نه؟

﴿**جواب**﴾: که ددی خبری یقین وی چی امام دلمانځه په ارکانو او شرائطو کی دنورو مذاهبو رعایت کوی نو دده اقتداء بلاکراهیته جائزه ده او که درعایت دنه کولو یقین وی نو کم لمونځ چی په ده پسی سوی وی هغه به صحیح نه وی.

او دکم امام چی دارقم حال معلوم نه وی نو په هغه پسی اقتداء کول مکروه ده. نن صبا دغیر مقلدینو اکثریت دانه دی چی دمذهبونو درعایت خیال نه ساتی بلکه داغلط بولی او په قصده ددی څخه خلاف کار کوی. او دمذهب خلاف کار کول ثواب بولی. نو په دی وجه ددوئ داقتداء څخه چی ترڅو ممکنه وی ځان ساتل پکار دی خو دضرورت په وخت کی وروپسی لمونځ کیږی جُمعَهٔ مه پریږدئ.

داتفصیل هغه وخت دی چی کله داامام صحیح العقیده وی که دده عقیده فاسده وی او مقلدینو ته مشرکان وائی او سلفو صالحینو ته بنکنځل کوی نو بهر حال دده امامت مکروه تحریمی دی. (احسن الفتاوی

۲۸۲/۳ بحواله رد المختار ۱/۵۲۶)

## ﴿دشافعي المسلک په اقتداء کی رفع اليدين(لاسونه پورته کول)﴾

﴿سوال﴾: زيـدمسلکاًحنفي دی.دَیٔ دجَمُعي لمو نځ پـه يودا سی امام پسی کوی څوک چـی شافـعي ياحنبلي المسلک دی.نوپه دی وجه زيدپه دغه امام پسی په زوره آمين نه ووائی اورفع يدين(يعنی دلاس پورته کولو عمل)هم نکوی.چونکه دا دامام اتباع ياتقليدنه سونوپه داسی صورت کی دزيد لمو نځ صحيح سو او که نه؟

دغـه رقـم کـه شافـعي الـمسلک ياحنبلي المسلک په حنفي الـمسلک امـام پسـی لمونځ وکړی اودی دامـام داتباع څخه خلاف رفع اليدين وکړی او آمين په زوره ووائی نوددی به څه صورت وی؟

﴿جواب﴾: پـه دی کـاروکـی دامـام اتباع لازمه نه ده.نوپه دی وجه دحنفي الـمسلک اقتـداء پـه شـافعي امام پسی اودشافعي المسلک اقتداء په حنفي الـمسلک پسـی صحيح ده. احناف دی رفع اليدين نه کوی .(احسن الفتاوی ۳۱۶/۳ بحواله ردالمختار ۱/ ۴۸۰)

کـه حـنفـي مـقتدی په شافعي امام پسی داخترلمو نځ وکړی نوده ته داختـر پـه تـکبيـرونـوکی دی دشافعي امام اتباع وکړی.دشـافعي المسلک



وغيره امامان چی دسهارپه لما نځه کی کـم دُعاء قنوت مستقل وائی يارفع اليـدين کـوی اويـاد جـنـازی پـه لمانځه کـی چـی کـم دځلورو څخه زيات تکبيرونه کوی دهغه اتباع به نه کوی ځکه چی دامنسوخ دی.(فتاوی رحيميه ۲۷۳/۱)

## ﴿حنفي امام به دشافعي مقتديانو امامت څنګه کوی؟﴾

﴿سوال﴾: زه حـنـفـي الـمسـلـک يم ، دشافعي المذهب په مکتب کی سبق وايم ، کله کله جهری لمو نځ ورکـم نوکه زه دشافعي المذهب مقتديانولحاظ وساتـم اودسـورة فاتحه څخه وروستـه دومـره وخـت خاموشه ودريږم چی هغوی څومـره وخـت کـی سـوره فـاتـحـه ژرژرووائی ، اوزه بيابل سورت شروع کړم نوپه دی کی څه حرج دی؟

﴿جواب﴾: حـنـفـي امـام تـه داسـی تـأخير کول جائزنه دی.اوداکارممنوع دی.دا لمو نځ بـه نـاقـص او واجـب الاعاده وی ،يعنی په دويم واربه دالمو نځ راګرځوی.

سُجده سهوه هم کافي نه ده.ځکه چی په صورت مسئله کی خوده قصداًتأخيرو کړی چـی داکارسهوه نه ده ځکه چـی دا ده په قصدباندی کړی دی (فتاوی رحيميه ۱/ ۱۶۶)

حـنفي امام شوافعوته داخترجُمُعه ورکولی سی خوپه خپله طريقه دی

کوی.مقتدیان به دده اتباع کوی او که مقتدیان رضامندنه وی نو بیادی دهغوی څخه امام جوړسی اوحنفی دی دده په اقتداء کی لمونځ وکړی اودوی به ددغه شافعی المذهبه امام په اقتداء کی داختر تکبیرونه بیا ډیروائی یعنی نه(۹)تکبیرونه به وائی. (**فتاوی رحیمیه ۱/ ۳۵۹ بحواله درمختار مع شامی** ۱/۷۳)

## ﴿که دناپاکی په حالت کی ئی جمعه ورکړه نوڅه حکم به ئی وی؟﴾

﴿**سوال**﴾: که یوامام صاحب په حالت کی دبی اوُدسی یادجنابت په حال کی جمعه ور کړی نو ددغه لمونځ ګزاروبه څه حکم وی اوچی داهم ورته یادنه وی چی دغه وخت څوک راپسی ولاړ وو او چاچاته به څنګه څنګه اطلاع ورکوی؟

﴿**جواب**﴾: په دُرِّمختارنومی کتاب کی راغلی دی چی که امام صاحب د جنابت په حالت کی یادبی اوُدَسیُ په حالت کی جمُعه ور کړی نو دده ته پکار ده چی مقتدیانو ته خبرور کړی.

نو دغه امام صاحب ته پکاردی چی ترکمه ځای کیدای سی چی کم یومقتدی وریادیږی نوهغه ته دی خبرور کوی چی دفلانکی وخت لمونځ را وګرځوی ځکه چی هغه لمونځ نه ؤوصحیح سوی.اوچی کم نه وریادیږی



نو دهغوی لمو نځ صحیح سو. که هغوی ته خبرنه ؤورسیدلی نوبیاپه دی کی څه حرج نسته.او که بیاچیری امام ته هغه مقتدیان وریادسی نوپکاردی چی هغه ته هم خبرور کړی.اوامام مذکوردی په خپله هم ددغه لمانځه اعاده وکړی اوددغی ګناه استغفاردی دالله څخه وغواړی.(فتاوی دارالعلوم ۳/۷۷بحواله ردالمختار ۱/ ۵۵۳ باب الامامت)

## ﴿چی ډیروخت ئی امامت کړی وی اودهغه څخه وروسته دکفراقراروکړی﴾

﴿**سوال**﴾: یوسړی تر ډیره وخته خلقوته جمُعه ورکوله خواوس په خپله د خپل کفراقرار کوی او وائی چی مابه دکفرپه حالت کی امامت کولونو آیاپر مقتدیانو ددغی اوږدی مودی دلمنځواعاده لازمه ده؟

﴿**جواب**﴾: که دهغه په کِفرکی داقرارڅخه بغیربل څه دلیل نه وی نودی داقراردوخت څخه مرتدګرځول کیږی.په تیره زمانه کی چی په ده پسی کم لمنځونه سوی دی هغه صحیح دی .(احسن الفتاوی ۳/ ۲۷۹بحواله ردالمختار ۱/ ۵۵۴)

## ﴿چی ډیروخت وروسته دامام دکفرحالت معلوم سی﴾

﴿**سوال**﴾: یوسړی تر ډیره وخته یوری خلقوته امامت ورکاوی اوس دقرائنو

څخه معلومه سوه چی دی کافردی خوپه خپله دغه سړی دکفراقرارنه کوی بلکه خپل ځان تـه مسـلـمـان وائی خوخلقوته دهغه په خبره باندی باورنسته بـلـکـه دخـلـقـوخیال دی چی دی منافق دی خوځـسی ځان مسلمان ښکاره کوی.نوکم لمنځونه چی دده په اقتداء کی سوی دی آیادهغه اعاده واجبه ده؟

**﴿جواب﴾**: کـه پـه شواهدواوقرائنو دده دکفرظن او گمان غـالب سی نوکم لمنځونـه چـی پـه ده پسـی سـوی دی دهغه اعاده فرضه ده. (**احسن الفتاویٰ ٣/٢٧٩ بحواله ردالمختار ١/٥٥٣**)

## ﴿آیاتراویح ورکول دامام ذمه واری ده ؟﴾

**﴿سوال﴾**: امـام صاحب پنځه وخته بنه پـه پـابـنـدی سره جُمعه ورکوی خو تـراویـح نـه ورکـوی.بعض خلق وائی چی تراویح ورکول دامام مه واری ده.د شریعت څه حکم دی؟

**﴿جواب﴾**: کـه امـام صـاحـب په تراویحوکی دقرآن شریف داورولو څخه عاجز اوقاصروی نوپه "اَلَمْ تَرَکَیْفَ فَعَلَ" دی تراویح کوی.دادده ذمه واری ده که مـقـتـدیـان حـضـرات پـه تـراویـحـو کی دقرآن داوُریدلو سعادت حاصلول غواړی نـوددغـه امام انتظام دی مقتدیان پخپله وکړی.امام صاحب دی نـه مـجـبـور وی. کـه لِوَجْـهِ الله (دالله لپـاره)تراویح ورکونکی پیدا نه سی نوبیوحافظ صاحب دی دروژی لپاره نائب امام مقرر کړی.دماخوستن اودنورو



نوپادوړو(٢) لمنځو ذمه واری دی وریغاړه کړی.اوس کـه دی په تراویحوکی قرآن مجید ووائی نوبیاداُجرت ورکولو گنجائش پیداکیږی (فتاویٰ رحیمیه ٣/٣٤٩)

## ﴿په تراویحوکی دامامت حق﴾

**﴿سوال﴾**: بکرپـه مسـجـدکی امام مقرر سوی دی اودی حافظ قرآن هم دی اوزیدهم حافظ قرآن دی.اوده به دپخوارا هسی په دی مسجدکی تراویح ور کولی.اوس بکروائی چی زه امام مقررسوی یم د تروایح ورکولوحق زمادی. زیدوائی چی زماپخوانی حق دی نودادچاحق جوړیږی؟

**﴿جواب﴾**: پـه دی مسئله کی کله چی بکرامام جوړسونو دتراویحو دامامت حق هم دده دی.(فتاویٰ دارالعلوم ٤/٢٨٢بحواله دُرمختار ١/٥٢٢باب الامامت)

## ﴿په تراویحوکی دمعاوضی شرعی حیثیت﴾

**﴿سوال﴾**: پـه روژه مبارکه کـی دقـرآن شـریف دختم کولولپاره دحافظ د اخیستلـواود(مـقـتـدیـانو) ورکولوپه نیت دقرآن اوریدل اواورول اووروسته اخیستل ورکول څـرنگه دی؟د دواړونیـت دورکـولـواواخیستلووی.ددی څخه بغیراوریدل اونه اورول کیږی. که چیری په یوه مسجدکی قرآن مجید نه وویـل سی(په تراویحوکی)اوصرف د تراویحوپه کولوسره اکتفاء وسی نو بیابه دغه خلق دروژی دقیام دفضیلت څخه محروم سی اوکه نه؟

**﴿جواب﴾**: په مزدوری قرآن شریف ویل بنه کـارنه دی.په داسی کولوکه

ثواب هم نه وی.اوپه حکم سره د"المعروف کالمشروط"دچاچی دور کولو اواخیستلو نیت وی هغه هم دأجرت په حکم کی دی اوناجائز دی.(ددې مطلب دادی چی که چیری یو حافظ داونه وائی چی زه پیسی غوارم اونه کلیوال ورته دپیسوورکولو ږغ وکړی لیکن په آخرکی دروژی وهغه ته پیسی ورکړی نودا کارهم هغسی دی لکه شرط چی ایښي وی دپیسوپه ور کولوباندی.(مترجم)

په داسی حالت کی دی صرف په "اَلَمْ تَرَ کَیْفَ فَعَلَ"باندی تراویح کول اوپه مزدوری باندی قرآن مجیدنه اوریدل ښه دی.اوصرف دتراویحوپه اداکولو سره دقیام رمضان فضیلت ورته حا صلیږی.(فتاوی دارالعلوم ۴/۲۶۴بحواله ردالمختارمبحث التراویح ۱/۶۶۰)

## ﴿دتراویح دامامت لپاره بلوغ شرط دی﴾

مسئله داده چی که چیری په هلک کی دبلوغت کمه نښانه نه وی مثلاً احتلام ، انزال نوبیاپر پوره ۱۵ کاله باندی شرعاًهغه بالغه بلل کیږی.نوکه چیری دروژی پراوله دهلک عُمرپوره (۱۴) کاله (۱۱)میاشتی ؤونودده امامت په تراویحواوتِرُوکی سم نه دی ولی چی داامام ابوحنیفه رحمة الله تعالی علیه صحیح مذهب دادی چی دنابالغه امامت په فرائضو،نوافلو او وُاجباتوکی صحیح نه دی.البته که چیری په ده کی یوه علامه دبلوغت



معلومیدل نوبیا پرواه نلری.

اودارقم دخورلسوکالوپه هلک پسی فرض اوتراویح کول هیڅ هم صحیح نه دی.ترکمه چی پوره دپنځلسوکالونوی سوی.البته که چیری په خورلسم کال کی دبالغیدلویوه علامه کی ښکاره سوه اودی هم ووائی چی زه بالغه سوی یم نوبیاپه ده پسی لمونځ صحیح دی.(فتاوی دارالعلوم ۴/۲۲۶ بحواله ردمختارباب الامامت ۱/۵۳۹)

## ﴿دمعذورحافظ امامت﴾

حافظ صاحب که چیری دعُذرپه وجه سره په ناستی تراویح ورکړی او مقتدیان ولاړوی نوبعض فقهاؤویلی دی چی د ټولو لمونځ صحیح کیږی.او بعض بیاوائی چی مقتدیان دی هم کښینی ددی لپاره چی د امام متابعت وسی. اودمخالفت صورت پیدانسی.(دواړه صورتونه جائز دی (ترجمه عالمگیری ۱/۱۸۹)

## ﴿چاچی دماخوستن لمونځ نه وی کړی دهغه امامت﴾

**﴿سوال﴾**:دماخوستن لمونځ وسو.دلمانځه وروسته تراویح شروع سوی . کم حافظ صاحب چی تراویح ورکوی هغه تراوسه دماخوستن فرض نه دی کړی دی دتراویحودوز کولولپاره ودریدی اودوه رکعته تراویح ئی ور کړی. بعضی مقتدیانو اعتراض وکړی اوحافظ صاحب ئی لری کړی دهغه وروسته

امام صاحب پاته تراویح ور کړي.

دامعلومول دي چي دمقتدیانو اول دوه رکعته وسوه او که نه؟ که چیری هغه نه وي صحیح سوي نو آیادهغه راګرځول ضروري دي؟

**جواب**: په صورت مسؤله کي دتراویحو دوه رکعتونه دراګرځول ور دي. ولي چي تراویح دماخوستن دلمانځه څخه وروسته دي نه اول.

په هم دغه وخت کي اعاده ضروري وه، که چیري ئې نه راو ګرځول نو بیاوروسته ترصبح صادق پوري یوازي کولای سوي. که چیري ئې تر سهاره هم قضاء نه راو ګرځاوه اووخت وواتی نو بیادي قضانسته. استغفاردي وغواړي اوپه دغه دوه رکعتو کي ئې چي څومره قرآن مجیدویلي ؤوکه ئې نه ؤورا ګرځولی نو بیا دي دوئیمه ور ځ راو ګرځوي. (فتاوی رحیمیه ص: ۲۳۵ بحواله کبیري ص:۳۸۵)

## دوترو امامت

دوترو جماعت دهغه امام چي فرض ئې ور کړي وي څخه علاوه بل څوک هم ورکولای سی. (فتاوی دارالعلوم ۱۵۸/۴) او داچي په خلقو کي مشهوره ده چي کم سړی فرض لمونځ ورکړی نو وترد ي هم هغه سړی ورکړي، که چیری دوئم سړي دوترو جماعت ورکړي نوهغه جائزنه دي. داخبره غلطه ده بل دوئم سړی دوترو جماعت ورکولای سی. او داصحیح ده (فتاوی رشیدیه کامل



ص:۳۲۸)

داصورت جائزدی، چي دتراویح ورکونکي وتر هم ورکولای سي که چیری دغه تراویح ورکونکی بالغ ؤو. څکه چي په نابالغ پسی نه تراویح صحیح دي اونه وتر. (فتاوی دارالعلوم ۱۹۲/۳)

## امام صرف دفرضو جمعه ور کړي او حافظ وتر

**سوال**: امام صاحب که چیری دماخوستن فرض اووترور کړي یایوازي فرض ورکړي او حافظ صاحب تراویح ورکړي نو ددي څه حکم دي؟

**جواب**: داهیڅ فرق نه کوي، حضرت عمرفاروق رضی الله تعالیٰ عنه به دفرضو اودوترو جمعه ورکوله اوحضرت أبی بن کعب رضی الله تعالیٰ عنه به تراویح ورکولي. هم دارقم که چیری امام صاحب صرف فرض لمونځ ورکړي او حافظ صاحب تراویح اووترور کړي نوپه دي کي هم څه فرق نه راځي. (فتاوی رحیمیه ۳۹۴/٤ بحواله عالمگیری ۸٤/۱) **یادونه**: دتراویح دمسائلو د تفصیل لپاره دي دمصنف صاحب "**مکمل ومدلل مسائل تراویح**" نامي کتاب وکتل سي.

## دتلویزن څخه امامت

لمونځ کم ماشینی عمل نه دی، بلکه دایو عبادت دی په کم چي انسان خپل ټول وجود که ظاهري وي او که باطني، قلب روح، زړه اودماغ، ژبه، اعضاء (جوارح) حرکات اوسکناتوسره دالله په حضور کي حاضریږي. د

اداالله سره دهم کلامي اودزړه دبيرې اوعاجزۍ څخه دډکيلو اظهاراونښانه وي.امام چې هر څه وائي ګواکې هغه په ډېراحترام ،ادب ،خشوع اوخضوع سره دخپلو مقتديانو خبره والله پاک ته درسولو کار کوي.

پرتلويزون باندې چې کم امامت ورکول کيږي هغه صرف يومشيني حرکت وي.په داسې صورت کې هغه خوف اوخشيت،تواضع اوانکسارۍ، ادب اوشانستګي اوخوف ورجاګله راتلاى سي.ددې وجهې څخه دفقهي نقطه نظر څخه ماسوى دعبادت اوبندګۍ روح هم ددې دشان اوکيفيت څخه مغايردي چې انسان دداسې مصنوعي پرزوپه قتداء کې لمونځ اداکړي.اود فقهي اعتبارپه لحاظ داضروري ده چې دامام اومقتدي په مابين کې دومره فاصله نه وي لکه واله،رُوډ،سړک اوپل. که چيرې دومره فاصله وي نوبيا اقتداء نه صحيح کيږي. (فتاوىٰ هنديه ۱ / ۴۵)

اودغه حکم دتلويزون هم دى چې که چيرې داصل امام اود مقتديانوپه مابين کې دصفونودتسلسل څخه بغيردومره فاصله وي نوبيااقتداء نه صحيح کيږي.اوکه چيرې لويه مجمعه وي اودصفونوتسلسل هم وي البته دلمانځه په ځاى کې دآسانۍ اودنقل وحرکت داندازې لپاره په مختلفو ځايوباندې تلويزنونه ولګول سي نوبياخولمونځ اداکيږي.ليکن داکارکول بيا هم دکراهيت څخه نه دى خالي.ولې چې دتلويزون دفقهي حيثيت څخه قطع



نظردلمانځه ومخ ته دداسې عکسوراتګ پرځپل ځاى باندې مکروه دى او ددې څخه خشوع وخضوع متأثره کيږي.ترکمه ځايه چې دنقل وحرکت دخبرتيامسئله ده نوهغه خودلاؤډسپيکرپه ذريعه سره هم کيدلاى سي. (جديدفقهي مسائل ص:۵۸)

## ﴿دټيپ په ذريعه باندې امامت﴾

پرټيپ ريکارډرباندې نه لمونځ صحيح دى اونه اذان.ځکه چې امام اومؤذن هم هغه کيداى سي کم چې ناطق خبرې کونکى وي اوپه ټيپ ريکارډر کښې په خپله ګويائي نسته.بلکه داېوه بې اختياره آله ده کمه چې دېوآواز نقل کوي.آذان اولمونځ عبادت دى کم چې دزړه دکيفيت سره سرته رسولى سي.اوټيپ ريکارډر خوېوجامداو غيرحساس شى دى.ددې آوازته عبادت نسې ويل کيدلاى.ددې د آوزحيثيت دمستقل "وينا"نه وي بلکه دا تابع محض دى.

هم داوجه ده که يوسړى په ټيپ ريکارډرباندې طلاق ورکوي او ووائي چې ماطلاق درکړى دى اووروسته بيادغه ټيپ درې واره پرهغه ځاى باندې واورول سي نوهم يوطلاق واقع کيږي.ددې دتکرارپه وجه سره په اصل طلاق کې تکرارنه راځي. اوهم دارقم که څوک داسې پرټيپ باندې دزړو روږيو اقرارو کړي اوډريکارډرنګ وروسته دغه اقرارپه واراوارو غږول

سی نو هغه دزرو رُوپو اقراردی په کی زیاتوب نه راځی. ځکه چی ...

آواز حیثیت دتابع دی.

نو له دی امله په داسی طریقه باندی ورکول سوی آذان او امامت

صحیح کیږی. بلکه دامحض یو صوتی اولفظی تکراردی. ددی مثال فقهاوو

ورکړی دی لکه څوک چی ویوه مُرغه ته تلاوت ورزده کړی. نو دغه تلاوت

فقهاء اصل نه بولی. اوپه دی سبب سُجده تلاوة هم نه واجبیږی. (جدیدفقهی مسا...

ص:۵۸ بحواله فتاوی هندیه ص:۲۸)

## دامامت لپاره ترټولوزیات حق داره سړی

دحنفیانوپه نیز د امامت زیات حق داره هغه څوک دی کم چی د

لمانځه دصحیح یاناصحیح کیدوپه مسائلوباندی زیات پو هیږی اودښکاره

ګناؤ څخه ځان ژغوری.

ددی څخه وروسته هغه سړی دی چی دقرآن مجیدپه تلاوت

اوتجوید کی ترنورو ډیرښه وی. دهغه وروسته هغه څوک چی ایمان ئی

پرنورو باندی مقدم وی. اوبیاهغه څوک دی چی په عُمر کی تر ټولوزیات

وی. اومقتدی او امام بایدداول څخه مسلمانان وی. بیاهغه څوک چی دهغه

بدنی ساخت جوړښت ښه وی. اوبیاهغه چی دهغه صورت تر ټولو ښه وی. ا...

بیاهغه چی په خاندان کی ترنورو ښه وی. اوبیاهغه چی دجالباس ترنورو ښائسته



اوصفاوی. که چیری په دغه ټولوامورو کی ټول سره برابروی اوپه خپل مابین

کی دامامت پرسرباند ی سره په جنګ وی نوبیادی دقرعه اندازی (پچی)

څخه کاروا خلی. که داسی نه وی نوبیاچی ددوئ خوښه وی نوهغه سړی دی

د امامت لپاره مخ ته کړی.

که چیری خلق پرقرعه اندازی باندی نه وی سره خوشحاله نوبیادی

هغه څوک ودرول سی کم چی تر ټولوزیاته رائیه یوسی. که چیری اکثریت

خوایو غیرمستحق امام و ټاکی نوداخوئی بدکارو کړی. لیکن ګناه نده. داټول

مسائل په هغه صورت کی را ځی په کم ځای کی چی دقوم باچایادهغه ځای

په کم ځای کی چی خلق سره را ټول سوی دی مالک یادوظیفی اخیستو

نکی نه وی. که نی دامامت لپاره خوتر ټولومقدم باچادی بیادکورخاوند اودا

رقم دیومسجد مقرر سوی امام بیالائق دی.

که چیری په کور کی مالک اوکرایه داردوا ړه وی نوبیازیات حق د

کرایه داردی. که چیری هغه کوردیوی ښځی وی نوبیاحق دامامت دهغه

ښځی دی لیکن پر ښځی باندی واجب دی چی هغه دامامت لپاره یونائب

ودروی ولی چی دښځی امامت جوړپدل صحیح نه دی. (کتاب الفقه ۱/۲۸۴)

دامامت مسئله ډیره غټه اواهمه ده ددی لپاره دامام دلوړی درجی

متقی اوپرهیز ګار، عالم عامل، عاقل اوداخلاق حمیده څخه متصف وی. د

حسن قرأت ښخه ښه خبروی ،صحیح العقیده،تندرسته ،وجیهه الصورت ، لمانځه په مسائلو باندی پوه اوظاهری عیبو ښخه پاک وی.(دمسلمانانو د امام حیثیت دفوج د مشرښخه زیات دی اودفوجی افسرظاهری عیب والانه وی یعنی ړوند، په لاس ګوډ، په پښه ګوډ،چغر،په یوه ستر که ړوند،ناجوړه او ابلیج وهلی نه وی )اودارقم دا هم ضروری ده چی لمونځ کونکوامام په خپله مرضی اوخوشحالی سره د امامت لپاره مقرر کړی وی اودده امامت دزړه له کمی قبلوی.

## ﴿دامامت دمکروهاتو بیان﴾

(۱)دفاسق امامت مکروه دی.هو که چیری مقتدیان دده په رقم وه بیاپرواه نکوی.

(۲)دبدعتی امامت مکروه دی. که چیری ئی بدعت دکفرودرجی ته نه وی رسیدلی.

(۳)دامام اوږدلمونځ کول مکروه تحریمی دی.ددی ښخه علاوه که چیری یو سړی دیو ښومحدودوښلقوامام وی اوهغه خلق په اوږده لمانځه باندی خوشحاله وی.ولی چی نبی کریم ﷺ فرمائی "مَنْ اَمَّ فَلْيُخَفِّفْ"(یعنی چی کم ښوک امام وی هغه دی لمونځ مختصر کوی)

**یادونه:**﴿دمختصر ښخه مراددانه دی چی سړی دی درکوع سجدی



،جلسی اوقومی خیال نه ساتی.بلکه مراد ددی ښخه دسُنت په اندازه باندی قرآن شریف ویل دی.ولی چی نبی کریم ﷺ په یو سړی باندی ښو واره لمونځ راوګرځاوی. هغه سپک لمونځ کاوی یعنی سُجده اورکوع ئی سمه نه کول.نوددی ښخه مراددادُ ږدوسورتونوویل دی ددی ثبوت دادی چی معاذ رضی الله تعالٰی عنه په یوه کلی امامت ورکاوی نوده به دماخوستن په لمانځه کی اُوږده سورتونه ویل نو خلقودده شکایت ونبی کریم ﷺ ته وکړی نبی کریم ﷺ ور ته وفرمایل اَفَتَانٌ اَنْتَ یَامَعَاذ اَفَتَانٌ اَنْتَ یَامَعَاذ یعنی ای معاذه ته خلق په فتنه کی اچوی چی اُوږد لمونځ ورکوی.داُوږده لمانځه ښخه خلق دجُمعی ښخه مُتنفره کیږی ﴾ (مترجم)

(٤)درانده سړی امام جوړول مکروه تنزیهی دی.لیکن که چیری هغه په ټولو کی افضله وُو(نوبیامکروه نه دی)اودغه حکم دولدالزنایعنی حرمنی هم دی.

(٥)دعالم په موجودګی کی دیوبی علمه امام جوړیدل مکروه دی.خواه هغه د ښاروی او که دکلی(یعنی صحراء)

(٦)دښائسته سپین مخی بی ږیری هلک امام جوړیدل مکروه تنزیهی دی ،که څه هم هغه لوی عالم وی.داکراهیت په هغه صورت کی دی که چیری دده دامامت ښخه څه خرابی پیداکیدله. که چیری دخرابی اندیښنه نه وه نوبیامکروه نه دی.

(۷)دداسی سړی امام جوړیدل چی هغه بی عقل وی او بی کاره وی یافالج وهلی وی یادفِس مرض وهلی وی او دفِسُ داغونه ښکاره پرمعلومیږی.اویا جزام مرض نیولی وی اویافالیج وهلی وی اوپرپو ښوسم نسی دریدلای.اوهم دارقم دکم چا چی لاس پری سوی وی دهغه سړی امام جوړیدل مکروه دی.

(۸)او دهغه چاامامت هم مکروه دی کم چی پرامامت باندی اُجرت یعنی مزدوری اخلی(متأخرینوفقهاؤپر امامت باندی اُجرت یعنی مزدوری اخیستل جائز بللی دی.نویه موجوده عصر کی په داسی سړی پسی لمونځ کول بلاکراهیته صحیح دی)البته که دوقف خلقو دامامت لپاره دأجرت شرط ایښی وی نو بیانه دی مکروه.ولی چی په دی صورت کی هغه اُجرت یامزدوری یوقسم صد قه یا کمک دی.

(۹)او دهغسړی امامت مکروه دی کم چی په فروعی مسائلو کی دمقتدی د مسلک څخه اختلاف لری.او داپه دی شرط چی ددی کاربیره وی چی هغه د داسی اختلاف پرواه نکوی دکم څخه چی اَوُدس یالمونځ دماینه خی.لیکن که چیری په دی کار کی دده شک نه راتلی په داسی رقم چی هغه تـه داختلاف پرواه سته یاداچی هغه ته دداسی اختلاف هیڅ علم نسته نوبیائی امامت نه مکروه کیږی.

(۱۰)دامام دنورو تېرلومقتدیانو څخه یولاس اندازه یادهغه څخه زیات پر لوړ



ځای بانـدی دریدل مکروه دی.ددی څخه کم لوړځای ژونوبیانه مکروه کیږی او دارقم دمقتدیانو دامام څخه پرلوړځای باندی دریدل مکروه دی.

په دادواړوصورتونوکی کراهیت په داسی حالت کی راځی چی د امام سره دده ددریدو پرځای باندی بل سړی نه وی ولاړ.او که یو یادوه کسان د امام سره پرهغه ځای بانـدی چی امام پرولاړ ردی ولاړ وی نوبیا کراهیت نه راځی.

(۱۱)دهغه سړی امام جوړیدل مکروه دی چی خلق بدځنی ورړی.او دده دیو دینی خرابی په سبب په ده پسی دلمونځ کولو څخه احتراز کوی.

(۱۲)دجنازی دلمانځه څخه ماسوی دښځو جماعت کول مکروه تحریمی دی. کـه چیری دجنازی لمو نځ ښځه ورکوی نو ښځه امام دی د ښځویه مابین (دصف په مابین) کی دی ودریږی.داسی لکه دهغه نارینو جماعت دکم چی ستر لخ وی. دښځویه جماعت کی حاضریدل مکروه دی خواه هغه دجُمُعی لمونځ وی او کـه داخترونـو یادشپی نصیحت وی.لیکن دورځی دضرورت پـه وجه په پرده کی تلای راتلای سی.په دی شرط چی ددوی د وتوڅخه دیوڅه خرابی دپیداکیدلو اندیښنه نه وی.

(۱۳)او دارقم دنرد ښځولپاره امام جوړیدل مکروه دی.او حال داچی جماعت په یو داسی کورکی وی چیری چی دده سره نرمُقتدیان نه وی.یا ښځی دامام

محرمي لکه مُور،خُورنه وي.(کتاب الفقه علی المذاهب الاربعه ج ا ص:۶۸۸)

(۱۴)دخُصي ،نر ښځي یانامرده سړي پر امامت بانـدې مقررول مکروه دي،اودا رقم دهغه چاامامت هم مکروه دی دچاچي دِخبرو انداز داسي وي لکه دښځو،او دهغه امامت مکروه دی کم چي دی دبل چاناجائزه اولاد وي یعني حرمني وي.داسي خلق که (مستقل)مقررسوی نه ؤونوبیاددوی امامت مکروه نه دی. ﴿یعني یو ځای ئی مؤقتي لمونځ ورکاوی﴾(مترجم).

(۱۵)دیومرئي یاغلام امام مقررکول مکروه دی.

(۱۶)دناسُنته امامت مکروه تنزیهي دی.او دارقم دهغه سړي امامت هم مکروه تنزیهي دی دکم چاچي حال نه وي معلوم چي بدسړی دی او که ښه.اودهغه سړي امامت چي نسب ئی نه وی معلوم.

(۱۷)دامام دمسجدپه محراب کی نفل کول یاپه محراب کی محض دلمانځه په رقم کښینستل مکروه دی.

(۱۸)دړانده امام جو ړیدل جائزدی خودلیدونکی امامت افضل دی.(کتاب الفقه ص:۶۹۰)

## ﴿پرلاؤډسپیکر(ګویا)باندې امامت﴾

دلاؤډسپیکرپه ذریعه باندی لمو نځ کول صحیح دی یانه؟په اول کی ...وستان اودهندوستان څخه دباندی دعلماؤپردی مسئله باندی اختلاف



ځنو بعض حضراتو داویل چي دلاؤډسپیکر آوازبعینه دامام آوازنه دی، بلکه د هغه د آوازباز ګشت دی.دارقم دمقتدیانو دامام پر دغه آوازباندی نقل و حرکت ګواکي پریوبل آوازپربنیادباندی دی.او داخبره جائزنه ده.چي مقتدی دامام پر ځای باندی دیوبل پر آوازباندی نقل وحرکت وکړي.

ددوی په مقابله کی بیادنوروداخیال ؤوچي ددی باوجوددلما نځه لپاره دلاؤډسپیکراستعمال جائزدی.اوپه شریعت کی ددی مثال موجود دی. چي د لما نځه څخه دباندی دیو سړي پر تلقین باندی لمو نځ کونکونقل وحرکت کاوی.چنانچه کله چي دبیت المقدس پر ځای باندی کعبه شریفه قبله جوړه سوه اودمدینې په شاوخواکی په بعض مسجدو کی دبیت المقدس وخواته لمو نځ کیدی ،دقبلي داو ښتوخبریوه سړي دوی ته ورکړي دوئ تولوخپل مُخان دکعبی شریفي وخواته پرلمانځه ولاړؤوواړه وی.ښکاره خبره ده چي دا نقل وحرکت دیوداسي سړي پرآوازباندی وسو کم چي د دوی سره په لمانځه کی شریک نه ؤواودلمانځه څخه دباندی ؤو.

اُوس داخبره په تحقیق باندی رسیدلی ده چي دلاؤډسپیکر آوازدامام دآوازنقل نه دی بلکه دابعینه دامام آوازدی کم چي دده دخولې څخه راوزی دارقم اوس دلاؤډسپیکر څخه دلمانځه اوامامت پرجوازباندی دعلماؤاتفاق سوی دی.

Scanned with CamScanner

بعض علماء ددی په استعمال کی یو څه کراهیت وینی.او دمجبوری په حالت کی ئی استعمال صحیح دی.ددی دلیل دادی چی فقهاؤبی له ضرورته د امام و آوازته تقویت ورکونکی "مُکَبِّرِین" دتقررمکروه اوبدعت بللی دی.ددی جهته دلاؤډسپیکرهم دی. مګردادلیل دغورو ړدی چی د مُکَبِّرِینو آوازبعینه دامام آوازنه دی اوحال دادی چی دلاؤډسپیکر(مائک) آوازدامام آوازبعینه آواز ثابت سوی دی.نوبیادی دوا ړوته ولی یوه درجه ورکول کیږی.لیکن داضروری ده چی لاؤډسپیکردی دضرورت په اندازه استعمال سی چی آوازئی په مناسبه اندازه وی او دمسجدپه حلودو کی وی لکه نن صباچی داخبره ممکنه ده. (جدیدفقهی مسائل ص:۵۷)

## ﴿امام دجُمعی لما نځه ته دباندی ولاړسی او که دما پښنین امامت ورکړی﴾

﴿سوال﴾: دکلی امام صاحب دجُمعی په ورځ وبل ښار کوټی یا ښارته د جُمعی دلما نځه دادا کولولپاره ځی.امام ته په خپل کلی دما پښنین لمونځ ور کول ښه دی او که بل ځای دجُمعی لمونځ کول؟ددی حدیث مطلب څه دی؟ چه"چادر ی یا څلورجُمعی دجُمعی لمونځ ونکړی ګویاهغه واسلام ته شاور وګرځول".

﴿جواب﴾: په دی حدیث مبارک کی چی کمه وعیدپر نه کولو د-دمعی د لما نځه راغلی ده دهغه مطلب دادی چی په کم ځای کی دجُمعی لمونځ فرض وی اوبیایو سړی په قصده سره دجُمعی لمونځ پریږدی نودغه موعود عذاب دهغه چالپاره دی.اوپه کوچنی کلی یابا نلهو کی دجُمعی لمونځ نه دی فرض.اود جُمعی لمونځ هلته نه کیږی هلته دغه وعیدپرنه کولوباندی دجُمعی نه راځی بلکه ددوی لپاره حکم دادی چی دُوی دی دماپښنین لمونځ هلته په جماعت سره اداکړی.

لیکن که چیری یو سړی وښار کوټی یاښارتـه دجُمعی دلما نځه د ادا کولولپاره ولاړسی نودادثواب خبره ده.او کم څوک چی دجُمعی دلمانځه لپاره د باندی ولاړنسی اوپه خپل کلی کی دما پښنین لمونځ اداکړي نوپرهغه باندی هیڅ ګناه نسته .(فتاوی دارالعلوم ۹۳/۵ بحواله عالمګیری مصری باب فی الجُمعه ۱۳٦/۱)

## ﴿امام په جُمعه کی قرأت اُوږد کړی او که خطبه﴾

خطبه بایدمختصره او لنډه وی.اوقرأت دسُنت موافق وی لکه سوره "سَبِّحِ اسْمَ رَبِّکَ الْاَعْلٰی" او نورداسی.(فتاوی دارالعلوم ۵۳ بحواله ردالمحتارباب الجمعه ۱/۷۵۸)

## ﴿دامام دخطبی په وخت کی دیوچاتعظیم کول﴾

﴿سوال﴾: امام دخطبی په حالت کی خطبه پریښول دیوچادتعظیم لپاره اوهغه

ئی پرمنبربانده کښیناوی او خطبه ئی پرنیمائی بانده پریښوول او پاته خطبه ئی ونکړه نولمونځ ادا کیږی او که نه؟

﴿جواب﴾:لمونځ ئی صحیح کیږی خو په آئنده کی دی داسی نکوی.

(فتاوی دارالعلوم ۵/۹۴ بحواله ردالمختارباب الجُمُعه ۱/۷۵۸) .

## ﴿دامام او دخطیب دنه موجودګی حکم﴾

﴿سوال﴾:(۱)دلمانځه او دخطبی پر ټاکلی وخت باندی خطیب اونه نائب خطیب راغلی نو آیادنیم ساعت انتظاروروسته متولی صاحب یوبل څوک امام در ولای سی؟

(۲)بل سړی لمونځ ور کولای سی او که نه هغه لمونځ صحیح کیږی او که نه؟

(۳)خطیب صاحب اکثره وخت غیرحاضروی اوتجارت کوی په ده پسی لمونځ کول صحیح دی او که نه؟

﴿جواب﴾:(۱)متولی بل امام درولای سی.(۲)بل سړی لمونځ ورکولای سی (۳)په داسی خطیب پسی لمونځ صحیح دی.(فتاوی دارالعلوم ۵/۱۳۱)

## ﴿دمنبر ددرجو تعداد﴾

دحضوراکرم صلی الله علیه وسلم دمنبردری درجی وی.دهغه مطابق اولی دی.کمی اوزیاتوب هم جائزدی.(احسن الفتاوی ج:۴ ص:۱۴۰)



## ﴿آیادامام پرمنبرباندی په ولاړی دریدل ضروری دی﴾

پرمنبرباندی په ولاړی خطبه ویل سُنّت دی.حضرت مُحمدصلی الله علیه وسلم او دخلفاء راشدینوهم دغه عادت اومعمول ؤو .(احسن الفتاوی ۴/۱۳۵ بحواله ردالمختار ۱/۷۷۰)

## ﴿دمنبرپر کمه زینه باندی خطبه ورکول کیږی؟﴾

په دی کی شرعاًکم حدیااندازه نسته.پر کمه درجه یازینه باندی چی ودریږی روادی.او دمنبر دختوسُنّت پر ځای کیږی.

پس ددی څخه زیات نور څه شرعاًکم قیدنسته.پردریمه یادویمه پر هره درجه چی ودریږی صحیح دی.په دی کی هیڅ بی ادبی نه راځی.

(فتاوی دارالعلوم ۵/۱۱۶ بحواله ردالمختارباب الجمعه ۱/ص:۷۷۰)

## ﴿په خطبه کی دخلقوشرط﴾

﴿سوال﴾:(۱)که چیری امام صاحب خطبه صرف دکوچنیانو او ښځو مخ ته وویل بل څوک نه ؤو آیادغه جائزدی او که نه؟

(۲)که چیری دیوه اویاددو کسانو مخ ته خطبه وویل سی او ددرو(۳)یاددرو څخه زیات خلقوسره لمونځ وسی لمونځ صحیح کیږی او که نه؟

﴿جواب﴾:جائزنه دی.ولی چی دجُمعی دخُطبی لپاره دامام څخه ماسوی

کم تر کمه ددری کسانو شتوالی لازمی او ضروری دی.په کم سره چی جماعت و درول سی.(احسن الفتاوی ۴/۱۲۳)

## ﴿دامام لکړه په لاس کی اخیستل او خطبه ور کول﴾

ددی متعلق دفقهی عبارتونه مختلف دی.تطبیقی صورت ئی دادی چی دافی نفسه سُنَّتِ غیرمؤکده دی. منکرددی لازمول او پردی باندی همیشتوب مکروه اوبدعت دی.(احسن الفتاوی ۴/۱۴۲)

دتطبیق بل صورت ئی دادی چی که ضرورت ؤونوبیادی لکړه په لاس کی نیسی او که تکلیف نه وی او ضرورت نه وی نوبیادی ئی نه رااخلی.(فتاوی دار العلوم ۵/۶۶ بحواله ردالمحتارباب الجمعه ۱/۷۷۳)

لکړه په لاس کی نیول خطبه ورکول خو ثابت دی اوبیله لکړی اخیستلو خطبه ویل زیاته ثابته ده.نوپس حکم دادی چی لکړه په لاس کی اخیستل جائزه ده اونه اخیستل ئی بهتره ده.حنفیانو دنه اخیستلو خپل اختیار کړی ده. نودلکړی اخیستل ضروری بلل او دنه اخیستلو والا په خلاف بَلْوِرَدُویل صحیح خبره نه ده.اودارقم کم څوک چی ئی اخلی پرهغه باندی هم ملامتی ویل صحیح نه دی.(کفایت المفتی ۳/۲۱۴)

## ﴿دخطبی داذان حکم﴾

داول صفت قید هیڅ ځای نسته.البته دفقهی دکتابو په الفاظو کی اذان



اَلْمِنْبَرُ،عِنْدَالْمِنْبَرِاو بَیْنَ یَدَیِ الْمِنْبَرِ څخه داثابتیږی چی دااذان دمنبرومخ ته او ومنبرته نژدی بایلوی.دمنبرسره دنژدی والی دامطلب نه دی چی په اول صف کی دی وی.(احسن الفتاوی ۴/۱۲۶ بحواله جامع الرموزجلد ۱/ص:۱۸)

## ﴿آیاامام داقامت څخه ترمخه مسئله بیان ولای سی﴾

**﴿سوال﴾**:داقامت څخه ترمخه دامام لپاره څه مسئله بیانول یانصیحت کول جائزدی او که نه؟

**﴿جواب﴾**:په مختصر ډول باندی یوه مسئله بیانول او امربالمعروف اونهی عن المنکر(دبلو څخه منع کول اووبنوکاروته رابلل)جائزدی اواُوږدنصیحت کول نه دی جائز. (احسن الفتاوی ۴/۲۱۳ بحواله ردالمحتار ۱/۷۷۰)

## ﴿په خُطبه اوجمعه کی جلاوالی﴾

**﴿سوال﴾**:په جمعه او خطبه کی که چیری زیات جلاوالی راسی نوبیاخطبه راګرځول لازمی دی او که نه؟

**﴿جواب﴾**:دخطبی اودجمعی په مابین کی ترحدزیات جلاوالی(فصل) راسی نوبیادخطبی اعاده ضروری ده.(احسن الفتاوی ۴/۱۱۲ بحواله ردالمحتار ۱/۷۷۱)

## دخطیب شخه علاوه دبل سړی لمونځ ورکول

دجُمعی دخطبی ورکونکی شخه علاوه دبل سړی امامت کول جائزدی په دی شرط چی لمونځ‌ورکونکی سړی به په خُطبه کی حاضرسوی وی خواه هغه په ټوله خُطبه کی وی او که په لږ کی.(احسن الفتاویٰ ج:۴ ص:۱۱۸)

## آیادجُمعی امام به سُنت کونکوته انتظار کوی؟

خطیب ته دسُنت کونکی ته ددسُنت شخه دفارغیدوپوری انتظار کول لازمی نه دی. کله چی مقرره وخت راورسیږی ،خطیب دخُطبی ویلو لپاره ولاړ یدلای سی ،پرده باندی هیڅ مؤاخذه او گناه نسته.ولی چی امام متبوع دی (یعنی چی دده به متابعت کیږی)تابع نه دی،مقتدیانوته خوداحکم دی چی کله خطیب دخطبی ویلولپاره پرمنبرباندی و خیږی نوبیادی نفل او سُنتونه پریږدی لیکن خطیب صاحب ته داحکم نسته چی هغه به ددوی د فراغت انتظار کوی، که چیری دوی(۲)یادری دقیقی امام انتظاروکړی نوپه دی کی هیڅ نقصان نسته،لیکن دامام دانتظارنه کولو شخه امام نه گنهگاره کیږی.(فتاویٰ دارالعلوم ۵/۷۶بحواله مشکوٰة شریف ۱/۱۰۱باب الجمعه ردالمختار ۱/۷۶۷)



## دخطبی ویلو طریقه

په حدیث شریف کی را ځی چی نبی کریم صلی الله علیه وسلم چه کله خطبه ورکول نوستر گی مبارکی به ئی سری سوی آوازبه ئی لوړاوخبرو په انداز کی به ئی سختوالی راغلی.اودارقم معلومیدل چی لکه یو لښکرچی اوس حمله کوی اونبی ﷺ مخاطبین ددغه غټ خطرشخه خبروی.(مسلم شریف ۱/۲۸۴)

دجوشی تقریر کونکوپررقم نبی کریم ﷺ لاسونه نه غورځول البته دخلقودپوهاوی لپاره به ئی پرموقع باندی دشهادت په گوته باندی اشاره کوله د دی لپاره که چیری یوعالم خطیب دموقع په مناسبت وحاضرینوته د خطاب په دوران کی او خطبه دترغیب اوترتیب په انداز کی ووائی نوبیاجائز اومسنون دی لیکن چپه اوراسته خواته مخ گرځول دنبی کریم ﷺ شخه نه دی ثابت.په بدائع نومی کتاب کی راغلی دی چی نبی کریم ﷺ به کله خطبه ورکوله نود قبلی وخواته به ئی شاوه اودخلقوخواته به ئی مخ ؤوړیدی به.(ج:۱ص:۲۶۴)ددی لپاره علامه ابن حجرعسقلانیؒ اونورو مُحققینو چپه اوراسته خواته مخ گرځول بدعت بللی دی.(شامی ۱/۷۵۹) البته که مخ مخامخ وی چپه او راسته خواته وگوری نوپه دی کی هیڅ تاوان نسته.(ردالمختار ۱/۷۰۹)اوداهم ښکاره خبره ده چی دترغیب اوترهیب مضامین هغه

څوک اداکولای سی کم چی په معنٰی اومضمون باندی بنه پوهیږی.نابلده سړی یوداسی غلطی کولای سی چی دیوپوه په نظر کی هغه یومضحکه انګیز وی.ددی لپاره چی په خطبه کی کم اندازغوره کیږی نوبایدپه ډیره پوه او زیرک والی سره هغه غوره کړل سی.(فتاوٰی رحیمیه ۱/۱۳۴)

## ﴿آیاپه خطبه کی په زُوروالی شرط دی﴾

په خطبه کی دومره په زُورویل شرط دی چی نژدی ناست سړی ئی واو ری.(احسن الفتاوٰی ۴/۲۶۴)

## ﴿دخطیب په غلطی کولوباندی فتحه ورکول﴾

چونکه په خطبه کی دیوخاص مضمون ویل ضروری نه دی.نوکه چیری په یوه مضمون کی خطیب ودریږی(اومخ ته نسی ولاړ)نوبیانورڅه ویلای سی.له دی وجهی وخطیب ته فتحه ورکول ضروری نه ده ،اودخطبی په حالت کی هرقم خبری کول ناجائزه دی ،له دی امله فتحه ورکول هم ناجائزه دی.(احسن الفتاوٰی ج:۴ ص:۱۴۱)

## ﴿آیادمُکَبِّرُ(تکبیرویونکی)لپاره دامام اجازت ضروری دی﴾

﴿**سوال**﴾:په جُمعی اواخترونو کی دامام داجازت څخه بغیرتکبیَر (اللّٰہ اکبر) په زوره ویل ددی لپاره چی دمُقتدیانولپاره آسانی سی جائزدی او که نه؟یوعالم



وائی چی بی له اجازته دامام څخه تکبیر کول دمُکبرلمونځ نه کیږی.صحیح څه دی؟

﴿**جواب**﴾:دلمونځ کونکی دآسانی لپاره اوخبرتیالپاره اللہ اکبرویل صحیح دی،ددی لپاره دامام اجازت ضروری نه دی.ددی عالم قول صحیح نه دی.
(فتاوٰی دارالعلوم ج:۵ ص:۱۵۰)

## ﴿داختر خطبه یوچاور کړه اولمونځ بل چاور کړی﴾

دارقم لمونځ صحیح کیږی.مګرمناسبه او بنه خبره داده چی خطبه او لمونځ یوسړی ور کړی.(فتاوٰی دارالعلوم ۵/۱۸۴ بحواله ردالمختارباب الجمعه ۱/۷۷۱)

## ﴿آیاامام دوه ځایه داخترلمونځ ورکولای سی﴾

دوه ځایه اودوه واره داختراودجُمعی لمونځ نسی ورکولای. که ئی چیری داسی و کړه نودویم واردمقتدیانولمونځ نه صحیح کیږی.ولی چی د امام دویم لمونځ نفل دی اوپه نفل کونکی پسی دفرضواوواجبوالالمونځ نه صحیح کیږی.(فتاوٰی دارالعلوم ۵/۲۲۴)

## ﴿په مزدوری دجُمُعی اواخترولمنځونه ورکول﴾

پرامامت باندی فقهاؤمزدوری اخیستل جائزبللی دی .(فتاوٰی دارالعلوم ۵/۲۲۳)(البته متأخرینوفقهاؤجائزبللی دی(مترجم)

## ﴿وبلوغ ته نژدې(مراهق)خطبه ووائی اوبالغ لمونځ ورکړی﴾

افضله خبره داده چې ددواړه کارولپاره امام اوخطیب یووی.بیاهم که چیرې مراهق دشعورخاوندلوی هغه خطبه ووائی اوبالغه سړی لمونځ ورکړی نو صحیح دی.(فتاوی محمودیه ج:۲ ص:۳۴۲)

## ﴿دامام په خطبه کی دحضرت معاویهؓ ذکر کول﴾

**﴿سوال﴾**:حضرت مولانادوست محمدؒاوحضرت مولاناعبدالستارؒ چې کمی خطبی شائع کړی دی په هغه کی دسیده فاطمهؓ څخه علاوه دنبی کریم ﷺ پاتی دری لونړونومونه شامل دی اودصحابه کرامؓ څخه دنوروصحابهؓ سره سره دحضرت سیدنامعاویةؓ نوم هم پکښې دی.

داخطبی په جُمعه کی ویل جائزدی او که نه؟که چیرې جائزوی نو صرف دمباح ترحده پوری اویاداوسنی حالاتوپه نظر کی نیولوسره افضله او مؤکده دی؟که چیرې داجائزه اوافضله دی نوزمونږدمتقدمینواومتأخرینوپه زمانه کی چی کمی خُطبی ویل کیدی په هغوی کی دغه نومونه ولی نه وو شامل ؟اودارقم ددی خُطبوپه وجه سره خوداکابرسلف صالحینولکه حضرت تهانویؒ دمسلکه څخه خوبه انحراف نه راځی؟

**﴿جواب﴾**:په هره زمانه کی دخُطبی دمضمون په ترتیب کی په اسلام کی دپیداسوفتنو څخه داهل السُنت دمسلک دحفاظت کولوغم خوردنی سره



ده.له دی وجهی دصحابه کرامورضی الله تعالیٰ عنهم اجمعین نمونه مبارکان اودوی ته دُعااوددوی مناقب په خطبه کی دراو ړوڅخه دروافضو(شیعه گانو) اوخوارجوتردیدیارَداواداهل السُنت دمسلک اعلان مقصددی.

په تیره زمانه کی چی کمی فتنی وی دهغوی دتردیدلپاره هم ددی صحابه کراموؓذکرکافی ؤو.اودایه دغه خُطبوکی ذکرسوی دی.

دموجوده دوریوه نوی فتنه دیوی داسی ډلی ښکاره کیدل دی کمه چی ځان ته داهل سُنَّت دعویٰ کوی خوزړونه ئی دصحابه کراموؓدبُغض څخه لکه دزهروپه رقم.خاص کربیادحضرت عُثمان رضی الله تعالیٰ عنه او د حضرت معاویه رضی الله تعالیٰ عنه سره متعلق ددوئ دزړونجاست ددوئ د ژبواوقلمو څخه راوزی.

داهل السُنت په مسلک کی دیوصحابیؓ څخه ادنیٰ څخه ادنیٰ بد گمانی ځای نسته.دیوصحابیؓ په حقله ډیره لږبدگمانی هم دالله پاک د غضب اودجهنم موجب کرځی.په دی وجه داخلق داهل السُّنت څخه خارج دی اوپه الحادکی دروافضوپرلاره روان دی.اودروافضودحضرت فاطمهؓ څخه ماسوی د حضرت محمدﷺدنورولو نړوسره بُغض لری.نوپه دی وجه ددی فتنود تردید ترمخی په خطبوکی دحضرت فاطمهؓ اودبنات مکرمات رضی الله تعالیٰ عنهن اجمعین مناقب اودفضائلوذکراودوئ لپاره د

رضی الله عنهم معمول جوړول پکاردی.په دی سره دحضرت تهانوی قدس سره دمسلک څخه انحراف نه راځی. بلکه دهغوی دمسلک په تائید وسی.نوپه دی وجه چی ددوئ خطبات په کمه نظریه مبنی دی په دی کی دا اضافه هم ددی نظرئیی لاندی کړه سوی دی دکم تفصیل چی پورته وښوول سو.(احسن الفتاوی ۳/۳۶۹)

## ﴿دجمعی دلمانځه څخه وروسته به دُعاوړده وی یامُختصره﴾

دُعادی ډیره نه اُوږده وی.(فتاوی دارالعلوم ۵/۱۰۹ بحواله ردالمحتار باب صفة الصلوة ۱/۳۹۴) او دا مسئله په کفایت المفتی ۳/۲۸۹۶ کی داسی لیکلی ده "دُعادی داسی وغوښتل سی چی پرمقتدیانوباندی بوجهـ نسی اوهغوی ته اُوږدوالی بلنه ښکاره کیږی"

## ﴿دامام دجُمعی دوئیمه دُعاکول﴾

دجمعی دلمانځه څخه وروسته دسُنتودکولو څخه وروسته چی هر سړی خلاصیږی خپله دُعادی کوی.داکار ښه اومستحب دی.لیکن داچی د سُنت کولو څخه خلا[illegible] او بیاامام صاحب اومقتدیان [illegible] ځای [illegible] په بعض ځایو کی دایورسم اورواج [illegible] نکنځل [illegible] اوردلعن اوطعن وړ [illegible] مطه ط[illegible] یدپریښول سی.(فتاوی



محمودیه ۲/۳۰۳)

امام چی کم وخت دلمانځه څخه خلاص سوپه هغه وخت کی دی دمقتدیانوسره یوځای کلِه دُعاوکړه سی.بیادی سُنتونه اونفلونه وکړی اوهریو دی په خپل کارپسی ولاړسی.دویم اودریم وار دُعاغوښتل ثابت نه دی.او لمونځ گزارمقید کول تردوئیمی اودریمی دُعاپوری جائزنه دی (فتاوی دار العلوم ۳/۱۳۰)

## ﴿په امامت کی دخپل مسلک رعایت کول﴾

**﴿سوال﴾**:داختروپه لمنځو کی امام حنفی المسلک دی اوترنیمائی زیات مقتدیان ئی شافعی المسلک دی.اوحنفی مقتدیان ترنیمائی کم دی.نو امام د چاپرمذهب باندی برابرلمونځ ورکړی؟

**﴿جواب﴾**:په اخترو کی دی حنفی امام دخپل مذهب برابرتکبیرات زوائد ووائی یعنی په هررکعت کی دی دری تکبیرات دتکبیرافتتاح اودرکوع څخه علاوه ووائی.

مقتدیان کم چی شافعی المذهبه دی هغه دی دخپل مذهب برابرخپل تکبیرونه پوره کړی. که چیری ددوی په نیزداجائزوی چی په حنفی امام پسی دی تکبیرات پوره کړل سی.مقصددادی چی حنفی امام لره ددوی دمذهب اتباع ضروری نده.لیکن که چیری امام ددوئ درعایت لپاره ددوئ دمذهب په مطابق تکبیرات ووائی نوهیڅ پرواه نلری.(فتاوی دارالعلوم ۵/۲۹۲ بحواله رد المحتارباب العیدین ۱/۱۱۳)

## ﴿چې دامام ښخه داخترو تکبیرونه هیرسي﴾

﴿سوال﴾: که چیرې دامام ښخه داخترپه لمانځه کې تکبیرات زوائدویل هیرسواو رکوع ته ورسیدی په یادئې سوه. نو آیابیائې په رکوع کې ووائی او د رکوع تسبیحات پریږدی یادرکوع ښخه پورته سي او تکبیرونه ووائی بیا رکوع را وګرځوی؟

﴿جواب﴾: په داسې صورت کې دی نه په رکوع کې وائی اونه دی بیاپه ولاړې وائی. اونه دی سُجده سهو کوی. ولې چې په داټولوصورتوکې ولمونځ کونکوته پریشانی جوړیږی او ددوی دلمانځه دخرابیدلو قوی امکان سته. په داسې حالاتوکې سُجده سهوه ساقطیږی او دلمانځه راګرځول هم ندی واجب په دی مسئله کې دفقهاؤنوروقولونه هم سته. کم چې په بحر، بدائع، فتح القدیر اونورو کتابو کې ذکرسوی دی. لیکن دردالمختار ۱/۵۶۱ کې علامه شامیؒ دغه خبره خو بنه کړې ده کم چې دلته ذکرسوه. (فتاویٰ محمودیه ۲/۳۰۷)

## ﴿په جُمعه او اخترونوکې سُجده سهوه کول﴾

﴿سوال﴾: که چیرې په جُمعه یااخترو کې کم واجب ځنې هیرسي اویاځنې پاته سي نو امام به بیاسُجده سهو کوی او که نه؟

﴿جواب﴾: که چیرې مجمع کمه وی او مقتدیان ټول پوه سي چې امام



سُجده سهوه وکړه بیاخو دی سُجده سهوه وکړی، او که چیرې مجمع زیاته وی او مقتدیانو ته داحال نه معلومیږی چې دا د څه لپاره داسې وسو او دوی دا خیال کوی چې لمونځ ختم سوی. نو بیادی سُجده سهوه نکوی. (فتاویٰ محمودیه ۲/۳۰۸ بحواله طحطاوی ص:۲۵۳)

## ﴿په اخترونوکې به دُعاڅه وخت کوی﴾

﴿سوال﴾: په اخترونوکې امام دُعا څه وخت وکړی دلمانځه وروسته اویاد خطبې وروسته؟

﴿جواب﴾: په اخترونوکې دې دُعادنوروولمنځوپه رقم دلمانځه وروسته دې دُعاوکړی. دخطبې وروسته دُعاکول مُستحب والی دهیڅ یوه روایت ښخه ثابت سوی نه دی. او داخترو دلمنځو ښخه وروسته دُعاکول هم دهغه احادیثو ښخه ثابت سوی دی کم چې دنورولمنځووروسته دُعاکولوپه باره کې ثابت دی. او دلمانځه وروسته دُعاقبلیږی. په حِصن حُصین کې هغه احادیث ذکر سوی دی اوزمونږداکابروهم دغه معمول دی. (فتاویٰ دارالعلوم ۵/۲۲۹ بحواله ردالمختار ۱/۴۹۵)

## ﴿دنقش اونګارپرمصلیٰ باندی لمونځ ورکول﴾

پرمصلوباندی چې کم دکعبې شریفې اودنورونقشونه سوی وی جونکه هغه اصلې نه وی. بلکه دادهغه یومصنوعی نقشه وی. له دی جهته ددی

احترام لازمی نه دی.او دمسلمانانوپه زړونو کی ددی عظمت موجود وی.د
دی دسپکو الی خیال ددوی په ذهن کی هم نه را ځی.ددی لپاره که چیری نا
پامه پښه پر کښیښوول سی نو ګناه نسته.او بهتره خبره داده چی پرداسی
مصلیٰ باندی دی لمونځ نه کوی دکم ځکه چی په لمانځه کی پرخشوع او
خضوع باندی اثر لو یږی.او دلمانځه روح خشوع او خضوع ده.او ددی
څخه بغیر لمونځ بی روحه دی.دلمونځ کونکی ومخ ته چی نقش اونګاروی نو
بیا د هغه توجه او پام هغه خواته اوړی.

آنحضرت محمد ﷺ دبی بی عائشتی رضی الله تعالیٰ عنها پردرواز
باندی ښائسته پَرْدَه ولیدل وفرمایل چی دالیری کړه ددی داګلان زما په
لمانځه کی خلل راولی.(صحیح بخاری شریف جلد: ۱ صفحه: ۵۴)

نبی کریم ﷺ ګل داره پتهوهم دځان لپاره نه ؤ وخوښ کړی اودائی
وفرمایل چی داپتهومایه لمانځه کی غافله وی.(صحیح مسلم ۱/۲۰۸)

ددی حدیث شریف په باره کی امام نوویؒ فرمائی چی دمسجد د
محراب اودقبلی خوادديوال نقش و نګارپه دی وجه مکروه دی چی دا
شیان دلمونځ کونکی خیالات اوتوجه وخپلی خواته اړه وی.اونبی کریم
ﷺ دګلانو دپتهو دلیری کولو علت هم دابښوولی ؤ چی ددی نقش او
نګارزماتوجه په لمانځه کی واړول.(نوویؒ شرح مسلم)فتاوی رحیمیه ۶/۲۷۴)



دکعبی شریفی دعکس لرونکی مصلیٰ باندی لمونځ کولو کی څه شر
عی ممانعت نسته.او ددی عکسو څخه دکعبی شریفی په تعظیم کی هیڅ فرق
نه راځی.(فتاویٰ محمودیه ۱/۱۱۱)

## امام پرچوکی باندی او مقتدی پرفرش باندی

**سوال:** په ګرمی اوباران کی دلړمانو او دمارانو له بیری که چیری د
ماخوستن او دسهار لمونځ امام صاحب دمسجد پرفرش باندی پرچوکی باندی
لمونځ ورکړی او مقتدیان پرفرش باندی وی نو ددی څه حکم دی؟

**جواب:** که چیری هغه چوکی دذراع (لاس قدر ۲۴ سینتی میټر) په
اندازه لوړه وه نو بیامکروه ده که نه بیاجائز دی.په هرحال داکار نه کول بهتر
دی.(فتاوی دارالعلوم ۳/۳۴۳ بحواله ردالمختارباب مایفسدالصلوة ۱/۴۰۲)

## امام پرفرش باندی او مقتدی پرمصلیٰ باندی

که چیری ترامام لاندی جائی نمازؤ او دمقتدیانو لاندی نه وی.یابر
عکس وی نوبیاپه دواړو صورتو کی لمونځ صحیح کیږی.(فتاویٰ دارالعلوم ۳/
۱۱۱) داله دی وجهی چی ددی څخه هیڅ خرابی نه پیدا کیږی.صرف دادی
چی ځای به پاک وی.هغه که هلته فرش او اوروی او که نه .(حاشیه فتاویٰ
دارالعلوم دیوبند ۳/۱۱۱)

## ﴿دامام دمسجدپه منځنی منزل کی دریدل﴾

﴿**سوال**﴾:یومسجددری منزله دی،دمابین په منزل کی امام ولا ړدی ،اوپه لاندی منزل کی اوپه لوړمنزل کی مقتدیان دریږی،نودلاندی مقتدیانولمونځ صحیح کیږی اوکه نه؟په ذکرسوی طریقه باندی لمونځ کول جائزدی اوکه نه؟

﴿**جواب**﴾:اقتداء صحیح کیږی لیکن امام بایدپه لاندنی منزل کی ودریږی پرپورتنی منزل باندی دی بی له ضرورته نه دریږی.اودادمسجدداصله وضعی څخه اودامُت دتواترعمل خلاف خبره ده.(احسن الفتاوی ۳/۲۸۱)

## ﴿دمسجدپه لوړمنزل کی جماعت کول﴾

دګرمی له وجهی دمسجدغولی(صحن) پریښودل اوپرېام باندی د ماخوستن لمونځاودتراویحوجُمُعه کول مکروه دی.

هو!که چیری یوسړی ته دمسجدپه غولی ځای نسی پیدااوهغه بام ته وخیږی لمونځ اداکی نوبیابلاکراهیته جائزدی.ولی داخومجبوری ده.

پرکعبه شریفه باندی لوړلمونځ کول (دبی ادبی اوبی عزتی له جهته مکروه دی.لیکن که چیری دتعمیراودمرمت په وجه سره ختلی وی نوبیانه دی مکروه.دارقم هرمسجدچی وی دهغه پربام باندی ختل مکروه دی.اود دی پربناء باندی دامکروه دی.

دګرمی دسختوالی څخه دی پربام باندی جمعه نه کوی.البته که په



مسجدکی ځای نه ؤونوبیاددی مجبوری په سبب دمسجدپربام باندی ختل مکروه نه دی.

په هرحال دګرمی تیزوالی ضرورت اومجبوری نه پیداکوی ولی چی ددی څخه داکیږی چی مشقت زیا تیږی.اواجروثواب هم زیا تیږی.دی ته مجبوری نسوویلای.په فتاوی عالمګریه(۵/۳۲۲)کی راغلی دی چی دتولو مسجدوپرباموباندی ختل مکروه دی.په دی وجه دسختی ګرمی په وجه د مسجدپربام باندی ختل اوجُمُعه کول مکروه دی.هو!که چیری مسجد تنګ ؤاودلمونځ کونکولپاره ځای نه ؤونودضرورت په اساس باندی پرلوړبام ختل مکروه نه دی.

په ګرمی کی دمسجدپه غولی باجماعت لمونځ کول بلاحرجه صحیح دی.که چیری غولی دمسجدپه حلقه کی نه وی دباندی وی اود مسجدبانی او ډلی نه وی نودډلی خلق دی سره متفق سی اودمسجددننه نیت دی وکړی (نوبیابه هغه ځای په مسجدکی داخل سی)اوپردی باندی د مسجدټول احکام جاری کیږی.(فتاوی رحیمیه ۳/۱۳بحواله کبیری ص: ۳۹۲اومجموعه فتاوی سعدیه ص:۱۲۸)

که چیری پرمسجدباندی لوړمستقل بام لرونکی منزل نه وی نوپه داسی حالت کی بی له ضرورته پرمسجدباندی لوړختل اودلاندی منزل د

کرمی په سبب اویانورو وجوهاتوپه سبب ولوړمنزل ته ختل اوجماعت کول مکروه دی البته که په مسجدکی دننه ځای نه ؤواوڅه مقتدیان پربام باندی وخیږی نوبیامکروه نه دی.(احسن الفتاوی ۳/۲۸۷)

## ﴿که په مسجدکی دامام څخه لاندی منزل خالي ؤو﴾

**﴿سوال﴾**: ترمسجدلاندی یودوه منزله مکان دی دامام ددریدلو ځای کلک نه دی بلکه کالي دی په دی کی څه حرج سته او که نه؟

**﴿جواب﴾**: که دامام ددریدلو دځای څخه لاندی خالي وی نوبیا څه حرج نسته ددغه ځای کلک والي ضروری نه دی.(فتاوی دارالعلوم ۳/۱۶۶)

## ﴿دامام دمحراب دمابین څخه وهغه خواته دریدل﴾

**﴿سوال﴾**: که امام دمحراب نیمائی خواپریږدی اوچپه یاراسته خواته دریږی اولمونځ ورکوی نوداڅنګه دی؟ که ممبرپه محراب کی دننه جوړ سوی وی لکه چی په اکثره مسجدوکی وی نوپه دی صورت کی امام ته په کم ځای کی دریدل پکاردی؟

**﴿جواب﴾**: دمحراب څخه مطلب دادی چی امام دی دصف په عین مابین کی ودریږی.اوداسُنت دی.نوکه محراب په بنه صحیح توګه دصف په مابین کی وی نوبیادمحراب عین مابین پر یښودل اودمحراب په چپه یاراسته خوا کی دریدل مکروه دی.خواه منبرپه محراب کی دننه وی او که دباندی،خوپه



هر حال کی به امام دمحراب په مابین کی دریږی.

په زیاتومسجدوکی دالیدل سوی دی چی امام منبرپریږدی دنور محراب په مابین کی ودریږی.داکارمکروه دی.ددی اصلاح لازمه ده.اودی مسئلی خپرول ضروری دی.بلکه ددی څخه زیات کله چی مسجد جوړیږی هلته ددی اصلاح لازمی ده چی دمنبر ځای وراسته خواته پریږدی اودمسجد په عین مابین کی جوړکړی چیری چی امام دریږی.اودهغه ځای څخه دمسجد فاصله چپه اوراسته خوا دواړی سره برابری وی. (احسن الفتاوی ۳/ ۲۹۳ بحواله ردالمختار ۱/۵۳۱)

## ﴿دامام په محراب کی دننه دریدل﴾

**﴿سوال﴾**دامام په محراب کی ددننه دریدلو څخه لمونځ مکروه کیږی او که نه؟

**﴿جواب﴾**:امام دی خپلی پښې دمحراب څخه دباندی ایږدی،بی له عُذره په محراب کی دننه پښې ایښوول مکروه تنزیهی دی.دکراهیت ئی دوی وجهی ویل سوی دی.

(۱)په محراب کی ددننه دریدلو څخه دامام حالت پر مقتدیانو باندی مشتبه کیږی.البته که اشتباه دمقتدیانوپر امام باندی نه راتله نوبیانه دی مکروه.

(۲)داهل کتاب(نصاری)سره مشابهت راځی.په دی سبب دمقتدیانوپر امام

باندی داشتباه نه کیلوسره سره په محراب کی دننه دریدل مکروه تنزیهی دی. که چیری ئی قدم دباندی ؤونو بیا کراهیت نه را خی.(احسن الفتاوی ۳/۲۱۱ بحواله ردالمختار ۱/۲۰۲)

## ﴿دلمونځ کونکو دډیروالی په وجه سره دامام په دروازه کی دریدل﴾

﴿سوال﴾: په روژه مبارکه کی دلمونځ کونکو زیاتوالی راغلی او دمسجد فرش کوچنی دی نو په دی سبب امام په دروازه کی ودریدی لمونځ ئی ور کړی نو آیا داجائزه او که نه؟

﴿جواب﴾: دامام په دروازه کی ددریدو شامی مکروه لیکلی دی. او دامام اعظم امام ابو حنیفه رحمه الله تعالیٰ علیه داقول ئی رانقل کړی دی. له دی جهته امام ته پکار ده چی که چیری ضرورت په دروازه کی ددریدو راغلی دلمونځ کونکو دډیروالی په سبب نو بیادی قدم ددروازی څخه دباندی ایږدی او سجده دی په دننه خواکی کوی چی داکار بهتره دی. که نه نو دضرورت په وخت کی په دروازه کی ددریدو څخه لمونځ خو صحیح کیږی لیکن باید خان خنی وساتی. او داخبره بهتره خبره ده.(فتاوی دارالعلوم ۳/۱۲۹ بحواله ردالمختار ۱/۲۰۲)





## ﴿دځای دتنګوالی په سبب داما م په مابین کی دریدل﴾

﴿سوال﴾: درش په وجه سره دصفو برابر والی نسی پاته نو امام او مقتدی یو ځای سره ودریږی یعنی دیو کوچنی مسجد توسیع وسوه دکم چی دپخوانی مسجد صرف چپه خوا راغله. او موجوده مسجد ته عین مخامخ امام صاحب خپل چپه خواته دوه کسان ودرول او امامت ئی وکړی او دغه زوړ مسجد په اوس وخت کی په خارجی ځای دمسجد دزینو دختلو لاره ده په داسی صورت کی دجماعت څه حکم دی؟

﴿جواب﴾: بی له ضرورته داسی کول مکروه دی. مګر دځای دتنګیدو له وجهی څخه بلا کراهیته جائز دی.(احسن الفتاوی ۳/۵۱۲)

امام بایدپه مابین کی ودریږی، ددواړ خواؤ څخه دی مقتدیان برابر کړی هو! ویوه خواته دمقتدیانو دریدل دسُنت خلاف خبره ده. چی کله جماعت دریږی دواړو خواؤ ته مقتدیان برابروی. بیاچی وروسته څوک راغله او په لمانځه کی شریک سول هغوی هم بایدالحاظ وساتی چی حتی الوسع په دواړو خواؤ کی شریک سی. او دامام دحد څخه زیات په زوره ویل او یاډیر کرارویل دواړه دسُنت خلاف دی.(فتاوی دارالعلوم ۳/۴۷ بحواله ردالمختار ۱/۸۳)

## ﴿په کم مسجد کی چی محراب نه وی هلته به امام څرنګه دریږی﴾

﴿سوال﴾: په یوه مسجد کی دامام صاحب لپاره ددریدو هیڅ ځای هم نسته

امام صاحب دمقتدیانو څخه یوقدم ترمخه دریږی نیمی صف دده وچپه خواته اونیمی دده وراسته خواته اوپه مابین کی خالی ځای پاتـه سونو آیادالمونځ صحیح کیږی او که نه؟

﴿جواب﴾: چی کله مسجددومره تنګ وی نوبیاداامام صاحب په مابین کی دریدل صحیح دی.لکه یومقتدی چې وی نوهغه خوراسته خواته ولاړ وی.او دا رقم ټوله خلق دی راسته او چپه خواته دی و دریږی.(فتاوی محمودیه ۲/۸۶)

## ﴿داامام وچپه یاراسته خواته دریدل﴾

﴿سوال﴾: دمسجددتنګی په وجه دوه صفونه نشی کیدای نوپه دی وجه په امام پسی ځای خالی پریږدی اوخلق راسته اوچپه خواته دریږی نوداسی لمونځ کیږی او که نه؟داسی:اول صف،مقتدی،امام ، مقتدی

﴿جواب﴾:دصف دډکولو اودخالی ځای ډکولو ډیرزیات تاکیدراغلی دی. له دی امله دی دصف په مابین کی خالی ځای نه پریږدی که چیری عُذروی اوبل هیڅ صورت نه وی نوبیادی امام ډیرزیات مخ ته نه ځی بلکه دونی دی مخ تـه سی چی داامام پښې دمقتدیانو دپښو څخه مخ تـه وی.یعنی بجلګی.

(فتاوی محمودیه ۲/۲۴۳)

## ﴿دمقتدی په ویناباندی داامام ومخ ته کیدل﴾

﴿سوال﴾:امام صاحب دشرعی قواعد ومطابق دیوه مقتدی سره لمونځ



کاوی.دوئم رکعت دختم کیلو څخه دمخـه یوبل مقتدی راغلی اوپه جماعت کی نی ځان شاملول غوښتل چونکه و اَوّل مقتدی ته دشاتګ موقع نه وه لـه دی وجهی دوئـم مقتدی وامام صاحب ته وویل چی ته یوقدم مخ ته سـه.امـام صاحب مخ ته سواوقرأت نی هغسی جاری ؤواوبیانی لمونځ ختم کړی."زید وائی چی دټولولمونځ فاسدسو.ولی چی مقتدی بایدوینا پر ځای په لاس سره اشاره کړی وای"آیادلمانځه دراکرځولوضرورت سته او که نه؟

﴿جواب﴾:پـه دی صـورت کی دبعضوفقهاؤقول دی چی لمونځ نی فاسد سو.مګرصحیح خبره داده چی لمونځ نـی صحیح سو.لیکن په حقیقت کی خوداؤو چی امام صاحب بایدپه اشاره باندی مخ ته تللای ؤو.لیکن په هر حال کی لمونځ ئی وسو.دلمانځه دراګرځیلوضرورت نسته.(فتاوی دارالعلوم ۴/ ۳۸ بحواله ردالمختارباب الامامت ۱/۵۳۳)

## ﴿که چیری داما م سره یوسړی ؤو﴾

﴿سوال﴾: که چیری داامام سره صرف یومقتدی لمونځ کوی اوبیادوئم راسی یادجماعت ټوله صف ډک سواوبیایوبل لمونځ کونکی راغلی نوددغه مخکینی صف څخه دمقتدی راایستل ضروری دی او که نه؟

﴿جواب﴾: کـه چیری داامام سره یومقتدی ؤواوبیادوئم راسیٔ نو بنه خبره داده چی اول مقتدی شاته سی اودوا ړه داامام وشاته ودریږی اوپه دی کی نی

داشرط لیکلی دی چی که چیری دمقتدی دلما نځه دفاسدیدلو بیره نه وه نوبیا دی هغه شاپوری وهل سی که چیری بیره وه نوبیادی داسی نه کوی.ددی شخه دامعلومه سوه چی وشاته کولوضرورت هغه وخت دی چی کله دا معلومه وی چی هغه (مقتدی)شاته ځی اوده ته دامسئله معلومه ده.

اودارقم پـه صف کـی دیوازی دریدوحکم دادی چی که چیری د صف شخه یوسړی دهغه وشاته کیدوسره بی تکلفه شاته سی نوبیادی داسی وکړی او کـه نه ؤنوبیادی داسی نه کوی اویوازی دی ودریږی.ددی تفصیل په شامی کی موجود دی.(فتاوی دارالعلوم ۳/۵۸ بحواله ردالمختار ۱/۵۳۱)

(مطلب دادی چی که چیری وشاته دراتګ ځای وی نوبیاخودی مقتدی شاته راسی او که چیری وشاته دتلو ځای نه وی نوبیادی امام مخ ته سی او که چیری داسی هم نسو کیدای نوبیادی دوئیم مقتدی دامام وچپه خواته ودر یږی لږدی وشا ته ودریږی لکه څرنګه چی اول مقتدی ولاړ دی)

## ﴿که یوازی ښځه یا کوچنی وی نوبیابه امام چیری دریږی﴾

﴿**سوال**﴾: زیدپـه خپل کـوریـه جماعت باندی لمونځ ورکـوی، که چیری مقـتدی یوازی یونابالغ هلک یایوه ښځه وی یاکوچنی او ښځه دواړه اقتداء وکړی نو دابه چیری دریږی؟دمحرم اودغیرمحرم په مابین کی څه فرق سته او که نه؟



﴿**جواب**﴾: کوچنی دی دامام وراسته خواته ودریږی او ښځه دی دامام وشا خواته ودریږی.ښځه محرمه وی او که غیرمحرمه ددوی دواړو یو حکم دی. (احسن الفتاوی ۳/۲۹۹ بحواله ردالمختار ۱/۵۳۰)

## ﴿مقتدی یوسړی یایو کوچنی وی نو څنګه به دریږی﴾

﴿**سوال**﴾: پـه مسجدکی دجُمُعی په وخت کی دامام څخه ماسوی یو سړی اویو نابالغ هلک ؤنوددوئ صف جوړول به څرنګه کیږی؟

﴿**جواب**﴾: سړی اونـابـالـغ کـوچنی دی دواړه یو ځای سره ودر یږی.(احسن الفتاوی ۳/۳۰۰ بحواله ردالمختار ۱/۵۳۴)

## ﴿داقتداء شرعی حدود﴾

﴿**سوال**﴾: داقتـداء لپاره شرعی حدود څه مقررسوی دی؟په لاندی صورتو کی کم یوجائزاوناجائز دی؟

(۱)امام پرلوړځای باندی دی اومقتدی لاندی دی.خواه هغه راسته خواته وی او که چپه خواته یاوشاخواته.اوبیاپه دی کی دوه صورتونه دی یوداچی وامام ته نژدی وی هغـه که دیوال ئی په مابین کی وی او که نه.اودوئیم صورت ئی دا دی چی دامام څخه لری وی هغه که ددوئ په مابین کی دیوال یابل شی پرده وی او که نه.

(۲)امام لاندی دی اومقتدی لوړدی ددی هم لوړذکرسوی څلورصورتونه

دی.

(۳)په افریقه کی دزیاتومکاناتولاندی حصه فرش دلرګی وی او ددی څخه لاندی ترمځکی پوری دانسان دقدپه اندازه باندی ځای خالی وی.په داسی صورتوکی دجماعت خانی څخه لاندی په خالی ځای مقتدیان دریدلای سی او که نه؟

(۴)دمسجدسره متصل اوسیدونکی یالری اُوسیدونکی لیکن داسی چی تکبیرات انتقال کیدلای سی داسی سړی په خپل مکان کی قتداء کولای سی او که نه؟

﴿**جواب**﴾:(۱)او(۲) که چیری امام یوازی پرلوړځای باندی ؤونوبیامکروه دی او که چیری دامام سره نورمقتدیان هم ؤونوبیاپه یوه حالت کی هم کراهیت نه راځی.لری اونژدی چی کله صفونه سره متصل وی دواړه صورتونه صحیح دی.(۳)په دی که هم هغه جواب دی چی که چیری دامام سره څه مقتدیان وی نوبیاپه لاندی حصه کی ودریږی نوبیااقتداء صحیح ده. (۴)په خپل کورکی د مسجدلپه امام پسی اقتداء نسی کیدای.خو که د مقتدیانو صفونه دومره راووږده سی چی دده دکوره سره یوځای سی نوهغه وخت بیاپه خپل کورکی دمسجد په امام پسی اقتداء کول جائزه ده.(فتاوی دارالعلوم ۳/۳۵۶)





## ﴿دمقتدی دامام څخه دمخ کیدو حکم﴾

﴿**سوال**﴾:په مسجدکی دجمعی په وخت کی ددوئیم چت څخه لمونځ کزاره دامام څخه ترمخه سوه(یعنی پښې ئی تیری سوی)نوددوئ لمونځ فاسدسو او که نه؟

﴿**جواب**﴾:که دمقتدی پونده دامام دپوندی څخه مخکی سوه نودده لمونځ نه کیږی او که ئی پونده ورسره برابره سوه نوبیائی لمونځ صحیح دی. که څه هم دمقتدی ګوتی دامام دګوتو څخه مخکی وی.

البته که دمقتدی او دامام دپښونوپه مابین کی دمره فرق ؤوچی ددواړو پوندودبرابروالی باوجوددمقتدی د پښې زیاته خوادامام د پښې څخه مخکی ولاړه نولمونځ ئی نه کیږی.(احسن الفتاوی ۳/۲۹۸ بحواله ردالمختار ۱/۵۲۴)

## ﴿دلمانځه وختونه به څوک ټاکی﴾

ښه خبره خوداده چی دامام اودمقتدیانوپه متفقه رایه سره دشریعت مطابق وخت و ټاکل سی.که مقتدی نه پوهیږی اوپه شرعی وخت نه پوهیږی نوبیادی امام وخت ټاکی.اواعلان دی وکړی اوټول دی ددی پابندی کوی (فتاوی محمودیه ۷/۲۸)



## ﴿دټاکلی وخت څخه مخکی لمونځ ور کول﴾

که دلمانځه وخت لا پوره داخل سوی نه وی نو لمونځ کول یالمونځ ور کول ناجائز دی. او که وخت پوره داخل سوی وی خو دڅه عارض په وجه دوی دری دقیقی له مخه لمونځ ور کړی او دجَمُعی پابنده لمونځ کونکی هم راغلی ؤونو په دی کی څه مضائقه نسته. که دجمُعی پابنده لمونځ گزاره نه وو راغلی نو دټاکلی وخته پوری دی انتظار وساتی. (فتاویٰ محمودیه ۱۳۷/۷)

## ﴿آیا پر امام باندی دمعلوم سوی وخت اهتمام ضروری دی؟﴾

عموماً که چی مسجدونو ته امام صاحب دلمانځه پر صحیح وخت باندی نسی رانولمونځ گزاره اعتراض کوی هغوی ته دوه دری دقیقی انتظار کول گران ښکاری. حالانکه دلمانځه لپاره انتظار کولو په باره کی حدیث مبارک سته. او داذان څخه وروسته په پوره وخت کی هر وخت دجَمُعی کولو اجازت سته او دوخت تعین صرف دآسانی لپاره دی چی لمونځ کونکی په دغه وخت کی سره رایو ځای سی. سوال دادی چی .....

(۱) دامام انتظار کول پکاردی که نه او څومره انتظار به کوی؟

(۲) آیا پر امام باندی د گهړی (ساعت) دوخت پابندی چی دوه څلور دقیقی دی هم تأخیر کوی دشرعیت له مخه ضروری دی؟

(۳) کم امام چی اکثره وخت دوه یادری دقیقی ناوخته مسجدته را خی ا



جَمُعه ور کوی هغه ته د کمی خبری احتیاط ضروری دی؟

(۴) کم لمونځ گزار چی په ناوخته کیلو په مسجد کی شور اوشر کوی او آواز لوړه وی دهغه څه حکم دی؟

(۵) دنبی کریم صلی الله علیه وسلم په زمانه کی او په قرون اُولیٰ کی به څنګه عمل کیدی؟

(۶) فقهاؤ کرامو په دی مسئله کی څه تفصیل بیان کړی دی؟

﴿جواب﴾: دحضور اکرم صلی الله علیه وسلم په زمانه کی او په قرون اُولیٰ کی او دغه رقم دفقهاؤ حضراتو رحمهم الله تعالیٰ په زمانه کی نه دُنیاوی مصروفیات زیات ؤو او نه گهړی (ساعت) ؤو. په دی وجه دجَمُعی به دا اُصول ؤو چی کله به وخت داخل سو نو اذان به ئی و کړی او بیا به لمونځ گزاره سره راټول سوه او جَمُعه به وسوه.

په دی زمانه کی یوی خوا ته دخلقو په دُنیاوی مشاغلو کی مصروفیت، انهماک او بلی خوا ته ددین څخه دغفلت او دلاپرواهی له مخه دآسانتیا څخه استفاده کول ضروری سوی دی. نو په دی وجه دنن صبا دحالاتو له مخه په گهړی (ساعت) دوخت معلومول او دامام لپاره دمعلوم وخت پابندی ضروری ده. دحضور اکرم صلی الله علیه وسلم او دصحابه کرامو رضی په زمانه کی به ئی د خلقو اجتماع ته کتل. اوس چونکه د گهړی (ساعت) په برابر باندی خلق سره را

یو خای کیږی.نو په دی وجه دااموهم ددی مقتضی دی چی په معلوم وخت
کی دی نه ناوخته کوی.ددی څخه علاوه په قرون أولی کی ائمه کرامو(پر
لمانځه باندی دخلقو څخه)تنخواه نه اخیستل.او داُوس زمانی امام خو تنخواه
دارملازم دی په دی وجه هم پرده باندی دوخت پابندی کول لازمی دی.البته
ولمونځ کونکوته دلاندی اُمورو خیال ساتل ضروری دی.

(۱)که چیری کله دبشریت دتقاضاء په مطابق امام یو دوه دری دقیقی وځنډیږ
ی نو دبنی صبری اودشور شرپر ځای دی دصبر اوتحمل څخه کارواخلی.او
دغه ځنډدی پریوه عُذرباندی حمل سی.اوپرامام باندی دی زبان درازی او
لعن طعن نه وائی.

(۲)که امام همیشه په ناوخته راتګ باندی عادت وی نوپکارده چی بنه په
نرمه ئی پوه کړی.

(۳)دیوهولوسره ئی که چیری خپل داعادت نه کړی بدل نوانتظامیه دغه
امام بدلولای سی خو په دی صورت کی هم امام ته بدکلامی اوده غیبت
کول هیڅکله جائزنه دی.

که امام په صحیح وخت باندی تیارسی او مسجدته راسی نوپه دی
کی څه مضائقه نسته. که دوخت دمخه څوک مسجدته راسی نولمونځ نه پر
مکروه کیږی.البته چی آذان واوری نوپکارده چی دلمانځه تیاری شروع کړی



چی په عین وخت مقتدیان انتظارنه وکړی.(فتاوی محمودیه ۲/۱۹۱)

## ﴿دلمانځه په شروع کولو کی امام دمتولی پابنده نه دی﴾

دلمانځه وختونه دشریعت لخوامقررسوی دی خو په دی کی وسعت
سته نوپه داسی وخت دی لمونځ وکړی چی هغه دشریعت په نیزمستحب
وی. اودجَمُعِی پابندلمونځ کونکی هم اکثره پردغه وخت باندی راځی.که
متولی دجَمُعی په شروع کولو کی ددی رعایت ساتی نوپه دی کی څه مضائقه
نسته که ددی رعایت نه ساتی بلکه په خپل راتګ ئی موقوف ساتی هغه که
وخت مستحب وی او که نه وی که دجَمُعی اکثره خلق راغلی وی او که نه
بلکه کله چی دی(متولی)په خپله راغلی نولمونځ فوراًشروع کړی اوترڅو
چی دی په خپله نه وی راغلی نوامام دده لپاره انتظارکوی اګرکه مستحب
وخت وزی او په مکروه کی داخل سی اویاتراوسه لامستحب وخت نه وی
داخل سوی.نوپه داسی حالت کی ددی رعایت ساتل شرعاًنه خو بنږل کیږی
اوامام ته دده اتباع هم نه ده پکار.په لمانځه شروع کولو کی امام مستقل دی
دادمتولی یادبل چا تابع نه دی بلکه ټول خلق دامام تابع دی بیاهم امام ته
داسی رویه نه دی اختیارول پکارچی ټولومقتدیانوته تکلیف وی.(فتاوی
محمودیه ۲/۱۲٦)



## ﴿دامام ديوه سړي لپاره دجُمعې ځنډول﴾

**﴿سوال﴾**: اکثره جاهلان متوليان په عالم امام باندې حکمت کوي. مثلاً چې کله دلما نځه په مقرروخت باندې امام په لما نځه دشروع کولوارادہ وکړي نومتولي وائي چې امام صاحب لږودريږه فلانکي لاندې راغلي نوآيادا انتظار کول جائزدي او که نه؟

**﴿جواب﴾**: دلمونځ ګزاروداجتماع ښخه وروسته دچادرا تګ دانتظارپه وجه په جُمعه کې تأخيرکول جائزنه دي. البته که يو څوک ډيرشريرانسان وي نودهغه دشر ښخه دځان ساتلولپاره تأخيرکيداى سي. (احسن الفتاوی ۲/ ۳۰۶ بحواله ردالمختار ۱/ ۳۶۲)

کم سړي چې متولي وي اودخپل ځان لپاره داسې تأکيدکوي چې تأخيروسي نوهغه ګنهګاره دي اودداسې خلقوانتظارکول هم نه دي صحيح. البته دعامومسلمانانوانتظارکول صحيح دي په دې شرط چې وحاضروخلقو ته تکليف نه وي اووخت هم مکروه نسي. مګردرئيسانواودنيادارانوانتظاربه نه کوي. چې پرخپل وخت ټول خلق راسي اويااکثره خلق راسي نولمونځ دې ورکړي. (فتاوی رشيديه کامل ص:۲۸۷)

## ﴿آياامام لپاره لنګوټه ضروري ده؟﴾

(۱) عمامه يالنګوټه مستحب ده



(۲) په لنګوټه کې لمونځ ورکول بطورعادت ثابت دي نه بطورعبادت

(۳) دلنګوټې سره لمونځ ورکول اولىٰ او مستحب دي

(۴) دلنګوټې بغيرلمونځ ورکول هم مکروه نه دي.

(۵) دنبي کريم ﷺ ښخه بيله لنګوټې لمونځ ورکول ثابت دي.

(۶) دامرواجب په رقم معامله دمستحب امرسره ناجائزدي.

(۷) په کموښاروکې چې په معززو مجلسوکې بې لنګوټې تلل دشرم خبره وي هلته لمونځ هم بې لنګوټې ورکول مکروه دي.

(۸) کله کله دمستحبوپه مقابله کې په رخصت يعني په مباح باندې هم عمل کول پکاردي خاص کرپه هغه ځاى کې چې په مستحبوباندې زيات اصرارکيږي چې په هغه مندوب دکراهيت حدته رسيږي ددې په وجه په فساد اماده کيدل خوډيره دجهالت اودګناه خبره ده.

(فتاوی محموديه ۷/ ۵۶)

دلنګوټې سره لمونځ ورکول مستحب دي خودلنګوټې ښخه بغير هم دځه کراهيت بغيرصحيح دي، البته په کم ځاى کې چې دلنګوټې دومره رواج وي چې بغيردلنګوټې ښخه ويوه معززه مجلس ته نه ځي بلکه دخپل کورښخه هم بغيردلنګوټې نه وزي نوپه داسې ځاى کې دلنګوټې بغير لمونځ ورکول او لمونځ کول مکروه دي. (فتاوی رحيميه ۴/ ۳۵۷)

## ﴿په دستمال کې لمونځ ورکول﴾

﴿سوال﴾: که داسې دستمال وتړي چې دسرمابين کې ښکاره کيږي او څنډه کې ورکوي نولمونځ ئې کيږي او که نه؟

﴿جواب﴾: خولې په سر کول پکاردي. دلمانځه په وخت کې داسې دستمال پرسرباندې پيچل مکروه اومنع دي. په فتاوی قاضي خان کتاب کې راغلي دي چې پرسرباندې داسې دستمال پيچل چې دسرمابين ئې ښکاره وي نودامکروه دي. (فتاوی رحيميه ۱/۱۸۵ بحواله قاضي خان ۱/۵۷)

## ﴿دلُنګوټې اودشملې اُوږدوالې﴾

﴿سوال﴾: خومره اُوږده لنګوټه تړل سُنت دي اوددې خومره وروسته پرېښوول سُنت دي. که شمله دنرۍ مُلاپورې خوک اُوږده کړي نوپه لمانځه کې ئې نقصان راځي او که نه؟ يوسړی وائي چې که ئې شمله دپاؤبالايوې لويشتې څخه زياته کړي نولمونځ ئې مکروه تحريمي دي په دې باره کې شرعي حکم څه دی؟

﴿جواب﴾: په دُرِمُختارنامي کتاب کې راغلي دي چې دلُنګوټې دشملې پرېښوول مُستحب دي اودملادمابين پورې دشملې اُوږدوالي مُستحب دی اوبعضې وائي چې دادی يولويشت وي اوپاته سوددغه سړي ويناچې وائي چې شمله دې دپاؤبالايوې لويشتې څخه زياته نه وي کنې لمونځ به ئې مکروه



تحريمي وي نوداخبره بالکل غلطه ده. دمُلاترمابينه پورې يايوه لويشت شمله دمستحب اُمورو څخه ده. ددې څخه خلاف کول مکروه تحريمي نه دي اوپه لمانځه کې څه کراهيت نه راځي. دشملې په باره کې په دُرمختار کې يوقول داسې هم دی چې دنرۍ مُلا څخه بياترلاندې پورې دشملې اُوږدوالي مستحب دی ددې څخه دامعلومه سوه چې دمُلاترپايه هم دشملې اُوږدوالي مکروه نه دی. دلنډوالي په رقم دلُنګوټې داُوږدوالي شرعاًهم څه خاص حد نشته. دنبي کريم ﷺ لُنګوټه بـه کـلـه لس لاسه وه اوکله به اوه لاسه وه. او نوروخلقوته نبي کريم صلی الله عليه وسلم هيڅرې دمعلوم اُوږدوالي حکم نه دی فرمائيلی. نو چې خومره اُوږده لُنګوټه وي اودخومره لُنګوټې ترلو عادت چې ئې وي نو ترې دې هيڅ وهم دې نه کوي. (فتاوی دارالعلوم ۴/۱۳۸ بحواله بحرالرائق ۲/۲۷)

## ﴿پر امام باندې دمقتديانو رعايت﴾

﴿سوال﴾: يو امام چې کله قرأت ختم کړي اورکوع ته ولاړسي نودالله اکبر لفظ دُومره اُوږد ووائي چې اکثره لمونځ ګزاره دده څخه مخکښې رکوع ته ځي. نوآياپه داسې صورت کې دمقتديانو درعايت لپاره معمولي قرأت او دومره وخت نه اخيستل پر امام باندې واجب دي او که نه؟

﴿جواب﴾: بـې لـه شکه دمقتديانو رعايت په داسې موقع امام ته مناسب دي

او تکبیر دی ډیرنه اُوږده وی بلکه مختصر دی وکړی چې دمقتدیانو تکبیر مخکښې ختم نسی. اؤمقتدیانو ته پکار دی چې لږوروسته تکبیرشروع کړی چې دامام څخه مخکښې نسی.(فتاوی دارالعلوم ۳/۹۳بحواله مشکوة شریف ص:۱۰۱)

## دامام لپاره دتسبیحاتو تعداد

چې سړی یوازی لمونځ کوی نوهغه ته اجازه سته چې که دری واره تسبیحات وائی که پنځه واره وائی او که اُوه واره وائی او که زیات وائی چې څومره ئې طاقت وی.البته امام دی ډیرتسبیحات نه وائی بلکه ددی لحاظ دی وساتی چې مقتدیان په آرام سره دری واره تسبیحات ووائی اوپوره ئې کړی.(احسن الفتاوی ۳/ ۲۹۶بحواله ردالمختار ۱/۳۶۲)

مستحب دادی چې امام دی تسبیحات پنځه واره ووائي او که ئې دری واره ووائی نوداسی دی ووائی چې مقتدیانو ته ددری واره ویلوموقع په لاس ورسی.(فتاوی رحیمیه ۴/۳۷۱)

## امام صاحب به دسُنت کونکو انتظار کوی او که نه؟

**سوال**: دماپښین لمونځ پردوی بجې کیږی دووبجوته دری دقیقې پاته دی یوسړی راغلی اودسُنتونیت ئې وتړی په دریم رکعت کې دوی بجې پوره سوی نوامام صاحب ته ددومره تأخیراجازت سته او که نه،چې دغه سړی کښې دغه څلوررکعته پوره کړی؟



**جواب**: هو!دومره اجازت ورته سته(فتاوی دارالعلوم ۳/۷۳بحواله فتاوی عالمگیری ۱/۵۳)

## که مقتدیان رانسی نوامام یوازی لمونځ کولی سی او که نه؟

**سوال**: یومسجدلری دی نوپه دی وجه اکثره جَمعه نه کیږی،کم امام چې هلته مقرردی که هغه دمقتدیانوپه نه راتګ یوازی لمونځ وکړی نودترک جماعت (دجَمعی دپریښوولو)ګناه خوبه نه وی باندی؟

**جواب**: په دی صورت کې دجَمعی دپریښوولو ګناه پرامام صاحب باندی نسته بلکه چې کله نورخوک رانسی نوامام دی اذان اواقامت وکړی اوبیادی یوازی لمونځ وکړی په دی رقم به دته دجَمعِی ثواب هم ورکول سی اودمسجدحق به هم اداء سی(فتاوی دارالعلوم ۳/۵۳بحواله ردالمختار ۱/۶۱۷)

## دامام لپاره دیومعلوم سړی انتظارکول

**سوال**: آیادیوه سړی په وجه په جَمعه کې تأخیرکول جائزدی خوچې مستقل امام موجودوی که دغه سړی نه راځی نودیوی بجې پرځای یوه نیمه بجه اودوی بجې لمونځ کیږی او دده درابللولپاره لپاره په مخه سړی لیږلی کیږی داکاردشریعت په نظرکې مذموم دی که ممنوح؟

**جواب**: که په معلوم وخت نورمقتدیان راسی نودیوخاص سړی انتظار کول جائزنه دی.خوکله چې په معلوم وخت کې ګنجائش وی اوپه قوم دګرانه هم نه وی یاداسړی شریراوفتنه پروازوی نوپه څه لږانتظارکولوکې څه

لړ انتظار کولو کي څه مضائقه نسته. که دی په دینی کارونو کی مصروف وسی نوده ته دلمانځه په اطلاع ور کولو کی څه پرواه نسته .(فتاویٰ محمودیه ۲/ ۲۲۳ بحواله طحطاوی ۱/ ۲۲۰)

امام که دیو دنیاداره اودرئیس انتظار کوی او دحاضرینو رعایت نه کوی نوامام اومکبر دواړه ګنهګاره دی. خو لمونځ پسی کیږی. (فتاویٰ رشیدیه کامل ص: ۲۲۸)

## ﴿دیوراتلونکی لپاره دقرأت یار کوع اُوږدول﴾

﴿سوال﴾: که امام دراتلونکی لمو نځ ګزاړیه وجه قرأت یارکوع اُوږده کړی چی لمونځ ګزاریکښې شامل سی نودی به ګنهګاره وی او که نه؟

﴿جواب﴾: که امـام صاحب یولمو نځ ګزاره وپیـژنـی اودهـغه په خاطرئی قرأت یارکوع اُوږده کړه نـوداکارکول مکروه تحریمی دی. البته دپیژندلوبغیر که اُوږد والی وکړی نوبیاهیڅ پرواه نلری. (احسن الفتاویٰ ۳/ ۳۱۴)

## ﴿چی امام سلام ګرځوی په دی وخت کی په ده پسی اقتداء﴾

﴿سوال﴾: امـام صاحب لمونځ ختم کړی اوچی اول سلام ئی ګرځاوی نولا ئـی لفظ دسلام نه ؤویلی چی یومقتدی پسی اقتداء وکړه نو دااقتداء صحیح ده او که نه؟

﴿جواب﴾: دا اقتـداء صـحیـح نـه ده. دوئیـم واردی تکبیرتحریمه ووائی او لمونځ دی شروع کړی. (فتاویٰ رحیمه ۲/ ۲۰۵ بحواله شامی ۱/ ۴۳۶)



## ﴿دذاتی اختلاف په وجه سره دجماعت څخه پرهیز کول﴾

﴿سوال﴾: بـعـض خلق دذاتی اختلاف په وجه په امام صاحب پسی دجُمعی لمو نځ نـه کوی اونورلمو نځ ګزارهـم لمسوی چی زموږ نوروته صفانه دی نوزموږ لمنځونه هم نه کیږی نو ددوئ داخبره صحیح ده او که نه؟

﴿جواب﴾: دامام سره ز ړه صفانه لرل اګرچـه بددی لیکن لمو نځ صحیح دی. (فتاویٰ محمودیه ۲/ ۸۲)

## ﴿دشرعی علت څخه ماسوئ په امام پسی لمونځنه کول﴾

دفقهي په کتابو کی ئی لیکلی دی چی که امام بی قصوره وی اوخلق دهغه داقتداء څخه کراهت کوی نو ګناه په لمو نځ پریښونکوباندی ده او که په امـام کـی قـصـوروی نودِی امام ته دداسی خلقوامامت چه هغوی ځنی خو شحاله نه وی مکروه دی. (فتاوی دار العلوم ۳/ ۷۷ بحواله ردالمختار ۱/ ۵۲۲ باب الا مامت)

## ﴿امام او مقتدیانو ته کله دریدل پکاردی؟﴾

که امام مخکښې ومـصلّی ته نژدی وی نو کله چی تکبیرویونکی حَیَّ عَلَی الصَّلٰوۃِ ووائی نوامام اومقتدیان دی تړول ودریږی او کـه امـام صاحب دصفو لخوارا ځی نـوچـی کـم صف ته امام صاحب راورسیږی نودهغه صف مقتدیان دی ولا ړسی تر داسی حال چی امام خپل ځای ته رسیږی نوټول خلق

به دریدلی وی. که امام صاحب دمخامخ لخوا را ځی نوچې شنګه ئی په امام نظرو لګیږی نو ټول لمو نځ ګزاردی ودریږی. ومصلّٰی ته دامام درسیلودی انتظارنه کوی.

په اولنی صورت کی ئی په حیَّ عَلَی الصَّلاَةِ باندی ددریلولیکلی دی. نوددی مطلب دادی چې ددی وروسته دی نورنه کښېنې (مثلاً څوک اخته وی تسبیح وائی اودختمیلو څخه مخکښې تکبیرشروع سی نودی که ئی د مُکَبِّرْ د حَیَّ عَلَی الصَّلٰوةِ پوری درسیلومخکی پوره کړی نوپرواه نه کوی خو د دی څخه وروسته بیاناست وی) خو که هم داقامت په ابتداء کی راولا ړسی نوبیاهم څه پرواه نلری. (فتاوٰی محمودیه ۲/۱۸۱)

اصلـه خبره داده چې کـم وخت مُکبِّرْ حَیَّ عَلَی الصَّلٰوةِ ووائی هغه وخت دریدل پکاردی خوپه احادیثو شریفانو کی دصفونو دسمولو اودغه رقم په مابین کی د ځای دنـه پرینبوولو ډیرتـاکیـد راغـلـی دی. اوعام طورخلق دمسائلو څخه نـااشنادی نوپه دی وجه دتکبیر دشروع کیلو څخه مخکی دی صفونه سم سی چې تکبیرهم ټول په آرام سره واوری اودغه وخت څه رغ هم نه وی. (فتاوٰی محمودیه ۲/۳۴۴)

## ﴿په امام پسی به نژدی کم خلق دریږی؟﴾

پـه امام پسی به اهل علم یعنی دعلم خاوندان اوداهل عقل یعنی دعقل



او پوهی خاوندان نژدی دریږی. دابنه خبره ده. خو که په امام پسی مُتصل نور لمو نځ کونکی ودریدل نوددوئ دلری کولوضرورت نسته. ولی چې لمونځ هررقم کیږی. (فتاوٰی دارالعلوم ۳/۳۵۷)

دفتاوٰی دارالعلوم دیوبندپه حاشیه کی لیکلی دی چې "په امام پسی د نژدی دریلوحق خو هم هغه چاته سته څوک چې اول راغلی وی څکه چې دامام په مابین کی ددریلوحکم دی اوبیاکه چیری صف پوره سی نوبل صف هم دامام څخه شروع کیږی". (فتاوٰی دارالعلوم ۳/۳۵۷)

خـو که اهل علم ته ترنوروخلقو ترجیح ور کړی اوپرخپل ځای ئی په امام پسی ودروی نوداسی کول هم صحیح دی بلکه مطلوب دی. (فتاوٰی دار العلوم ۳/۳۵۷ بحواله ردالمختار ۱/۵۳۲ باب جوازالایثاربالقرب)

هـر کله چې یوسړی په امام پسی ودریږی نووبل لمو نځ کونکی اویا امام ته دااجازت نسته چې ددغه ځایه څخه دی لری کړی خو که دی په خپله په لیری کیلو باندی خوشحاله وی نوبیا څه نقصان نلری. (فتاوٰی محمودیه ۲/۱۹۲ بحواله طحطاوی ص: ۳۰۴)

## ﴿په امام پسی نژدی دمؤذن ځای معلومول﴾

پـه مسجد کی دهیچاپاره دځای مـعلومول روانه دی. که مؤذن دامام سره نژدی دریدل غواړی نودنوروله لمو نځ ګزارو څخه دی دمخه راځی. کنی

چی کم ځای ورته پیداسی هلته دی اقامت و کړی. داقامت لپاره اول صف یا په امام پسی مُبتنی څه قیدنسته. (احسن الفتاوی ۳/۹۵)

## ﴿دامام دتکبیرپه وخت پرمصلٰی باندی دریدل﴾

داضروری نه ده چی کله امام په مصلٰی باندی ودریږی نومؤذن دی تکبیروو ائی بلکه چی کله امام په مسجدکی موجودوی نوتکبیروویل صحیح دی. امام چی تکبیرواوری نوپه خپله دی مُصلٰی ته راسی. لکه څنګه چی د دُرِمُختاردی عبارت څخه ښکاره کیږی چی وائی: "وَيَقُوْمُ الْاِمَامُ وَالْمُؤْتَمُّ حِيْنَ حَيَّ عَلَى الْفَلَاحِ اِذَاكَانَ الْاِمَامُ يَقْرُبُ الْمِحْرَابَ وَاِلَّافَيَقُوْمُ كُلُّ صَفٍّ يَنْتَهِيْ اِلَيْهِ الْاِمَامُ عَلَى الْاَظْهَرِ الخ". (فتاوی دارالعلوم ۲/۱۱۲ بحواله ردالمختار ۱/۴۴۷)

## ﴿دتکبیرڅخه وروسته دامام تر ډیره ساعته دنیت ترلو لپاره پاته کیدل﴾

**﴿سوال﴾**: یوسړی دماپښین دسُنتونیت وتړی صرف دوه رکعته ئی کړی وُو چی تکبیروسوترکمه وخته چی ددی سړی څلور رکعته پوره کیدل ترهغو پوری لاامام مصلٰی ته نه ؤورغلی کله چی ده څلوررکعته پوره کړه نوامام صاحب مصلٰی ته راورسیدی اوداولنی تکبیرسره ئی لمونځ اداکړی. دالمونځ



وسواو که نه؟

**﴿جواب﴾**: په دی صورت کی لمونځ وسواودتکبیرداعادی یارا ګرځولو ضرورت نسته. (فتاوی دارالعلوم ۴/۱۷۳ بحواله ردالمختار ۱/۳ باب الاذان)

## ﴿که امام بغیر دتکبیر څخه جُمعه شروع کړه نو څه حکم به ئی وی؟﴾

**﴿سوال﴾**: امام صاحب پرمُصلٰی باندی ودریدی اومقتدیانوته ئی دتکبیرلپاره وویل په تکبیرکی په څه وجه تأخیرراغلی امام دتکبیرپه اندازه تأخیرو کړی او دکونړوالی په وجه ئی وانه وریدی اونیت ئی وتړی نوپه لمانځه کی یادجُمعی په ثواب کی خوبه څه حرج نه راځی؟

**﴿جواب﴾**: په دی صورت کی لمونځ وسواودجُمعی ثواب هم ورته ور کول کیږی او اقامت چی سُنت دی پاته سوخودنه اوریلوپه سبب داسی وسو نوپه دی وجه پرده باندی څه ګناه نسته. (فتاوی دارالعلوم ۲/۹۲ بحواله عالمګیری ۱/۵۰ باب الاذان)

## ﴿امام لنګوټه ترله او اقامت وسونوددی څه حکم دی؟﴾

**﴿سوال﴾**: امام پرمُصلٰی باندی ولاړ ؤولنګوټه یادستمال ئی تړی مؤذن تکبیر ختم کړی امام وویل چی بیاتکبیروو ایه نوددوئیم وارلپاره دتکبیرضرورت ؤؤ؟

﴿جواب﴾: په دی صورت کی ددوئیم وارلپاره تکبیرضروری نه ؤو. (فتاوی دارالعلوم ۲/۱٦۱ بحواله ردالمختار ۱/۳۷۱ تا ۳۷۲ باب الاذان)

## ﴿دامام دقَدْقَامَتِ الصَّلٰوة سره دلاسو نو دترلو حکم﴾

﴿سوال﴾: کـه چیـری یـو امـام مؤذن وپوره تکبیرپلوته نه پریږدی اوهمیشه پرقدقامت الصلوٰة باندی نیت تړی نو څنګه دی؟

﴿جواب﴾: ښه خبره داده چی دتکبیردختم کیلو څخه وروسته نیت وتړی او کـه پـرقَدْقَامَتِ الصَّلٰوةِ باندی نیت و کړی نوداهم جائزاوروا دی. خو اولی صورت اولیٰ دی. (فتاوی دارالعلوم ۲/۱۱۳)

اصح او معتدل مذهب دادی چی تر څو تکبیرخلاص سوی نه وی تر هغوپوری دی امام لمونځ نه شروع کوی ځکه چی په دی صورت کی به د ټول تکبیرجواب به ټول خلق ور کړی او دامستحب او مسنون دی.

په حدیث شریف کی راغلی دی چی کم وخت مُکبرقَدْقَامَتِ الصَّلٰوة وویل نو حضورﷺ به اَقَامَهَااللّٰهُ وَاَدَامَهَاوویل. (فتاوی دارالعلوم ۲/ ۲۱۳ بحواله حدیث ابوداؤدومشکوة باب الامامت)

## ﴿امام به څنګه نیت کوی﴾

داسی نیت بـه کـوی (۱)زه خـالص دالله لپاره لمو نځ کـم (۲)فرض کوم (که واجب اویانورلمو نځ وی نو دهغه خیال دی ساتی) (۳)دکم



وخت لمونځ چی وی دهغه تصوردی و کړی.

وَكَفٰى مُطْلَقُ نِيَّةِ الصَّلٰوةِ لِنَفْلٍ وسُنَّةٍ وَتَرَاوِيحَ وَلَابُدَّ مِنَ التَّعْيِيْنِ عِنْدَالنِّيَّةِ لِفَرْضٍ وَلَوْقَضَاءً وَوَاجِبٍ دُونَ عَدَدِرَكَعَاتِهِ وَيَنْوِى الْمُقْتَدِى الْمُتَابَعَةَ. (تنویرالابصار)

امام ته دامـامـت نیت کول ضروری نه دی خو که یوازی سړی پسی نیت تړی نـو دهغـه دامـامـت نـیـت کـول پکاردی. چی هغه ته دامامت ثواب حاصل سی البتـه مقتدی ته داقتداء نیت کول ضروری دی. (فتاوی رحیمیه ۱/۱٦۷ بحواله رد المختارمع شامی ۱/۳۹۴)

## ﴿دلمانځه نیت په کمه ژبه کی ضروری دی؟﴾

نیت دزړه ارادی تـه وائـی پـه ژبـه ئـی ویناته ضرورت نسته. او که ئی ووائی نوښه خبره ده. او که په هره ژبه هغه کـه پښتو، فارسی، اُردو، انګلش اونور داسی ژبی چی وی ووائی نو هیڅ حرج نسته. (فتاوی دارالعلوم ۲/۱۴۹ بحواله عالمګیری ۱/٦۱ طبع مصری)

## ﴿امام ته دمقتدی ښځی نیت کول﴾

که ښځه دسړی سـره یورقم نه وی ولا ړه نـوامـام ته ددی دامامت د نیت کـولـوضـرورت نستـه. (فتاوی دارالعلوم ۲/ ۱۴۹ بحواله ردالمختار ۱/ ۳۹۴ باب فی النية)

دحنفیانو په نیز دلمانځه دصحت لپـاره دامام دامامت نیت کول په

داسی حال کی شرط دی کله چی امام وښځوتـه امامت ورکوی. که امام د ښځودامامت نیت نه و کړی نودښځولمونځ فـاسـدسو .البته دامام لمونځ به صحیح وی (کتاب الفقه ۱/۲٦٦)

حنفیان وائی چی دامامت نیت صرف په یوه صورت کی لازم راځی کله چی یو سړی دښځوامـامت کوی چی په محاذاتویعنی ښځودسړوسره د برابردریلوپه مسئله کی خرابی پیدانه سی.(کتاب الفقه علی المذاهب الاربعة ۱/ ۳۴٦)

## ﴿دژبی اودزړه دنیت په مابین کی داختلاف حکم﴾

(نیت ارادی ته وائی) نیت صرف په اراده کیږی پـه ژبه دالفاظودویلو ضـرورت نسته بلکه که په ژبه دقلبی نیت شخه خلاف هم وسی نولمو نځ به صحیح وی.دز ړه دنیـت ادنـٰی درجه داده چی دچاپه پو ښتلوورتـه سملستی وویل سی چی څه ویل غواړی.پـه قلبی نیت کی دسُـنت اودتراویحواونورو هیڅ رقـم دمعـلومولو ضرورت نسته مطلق دلما نځه نیـت کـافی دی.البته په فرضواوواجبوکی صرف دومره معلومول ضروری دی چی دادماپښین فرض دی او که دماز یگر.اوپـه واجبـو کی داچی داوِتردی او که نذر.اوپه دی کی د ورځواود رکعتونو د تعداد دنیـت ضـرورت نسـتـه.بلکه په دی کی هم دقلبی نیت غلطی نقصانی نه ده.که د لمانځه شخه دمخه په ژبه اوزړه کی اختلاف پیداسی نودزړه نیت ته اعتبارور کول کیږی دژبـی غلطی اعتبارنلری.او که د



لمانځه دشروع کیلو شخه وروسته په زړه کی نیت بدل کړی نـو دااعتبار نلری.(احسن الفتاوی ۳/ ۱٦-۱۷ بحواله دُر مختار ۱/ ۳۹۰)

## ﴿دتـکبیرتحریمه شخه وروسته نیت و کړی لمونځ ئی نه صحیح کیږی﴾

**﴿سوال﴾**:زیدتکبیرتحریمه ووائی اولاس ئی پرنامه و تړل اوبیائی په ژبه پوره نیت ووائـی او اعُوذبالله،بسم الله،اوفاتحه اوقرأت ئی ووائی او لمونځ ئی پوره کړی نولمو نځ ئی وسواو که نه؟

**﴿جواب﴾**:دتـکبیرتحریمه دختمیلو شخه مخکښې نیت ضروری دی په دی وجه دزیدلمونځ نه وسو .او که دتکبیرتحریمه دختمیلو شخه ئی دمخه په زړه کی نیت کړی ؤونواگرچه دقلبی نیت په وجه دلمونځ ابتداء صحیح سوه خـوبیـا وروسته دنیت دالفاظودویناپه وجه لمونځ فاسدسو .(احسن الفتاوی ۳/ ۱۳ بحواله ردالمختار ۱/ ۳۴۸)

## ﴿په تکبیرتحریمه کی دګوتوحالت﴾

دتـکبیرتحریمه په وخت کی دګوتـودنه خلاصولو کوشش کوئ اونه ئی دیوځای کولوبلکه داپه اصلی حالت کی پر یږدی.لویه ګوته دغوږودنرمی سره ومو ښلوی اوورغـوی دقبـلی وخواته مخامخ کړی.(احسـن الفتاوی ۳/ ۱۹

بحواله ردمختار ۱/۴۵۰)

## ﴿امام دی په تکبیر تحریمه کی تلوارنه کوی﴾

دردالمختار دعبارت "وَيَصِفُ الْإِمَام......الخ" (ردالمختار ۱/۵۳۱ باب الامامت) ځخه ښکاره کیږی چی امام ته داضروری دی چی دی مقتدیانو ته د سم دریدلو او د صفونو دسمولو حکم و کړی. نو امام ته پکاردی چی په تکبیر تحریمه کی دی داسی نه کوی چی صف پوره سوی وی که نه او صف سم دی او که نه او ټول لمونځ گزار که برابرولاړ وی او که نه خوبس سمدستی نیت وتړی داسی دی هیڅکله نه کوی.

یعنی امام ته پکاردی چی کم وخت پر لمانځه باندی ودریږی نو په خان پسی دی مقتدیان و گوری چی ټول سم ولاړدی او که نه، او صفونه سم دی او که نه. او دمقتدیانو په مابین کی خو خالی ځای نه دی پاته یعنی اوږه په اوږه ولاړه پکار ده. ددی په حدیث شریف کی زیات تأکیدراغلی دی.

## ﴿دتکبیر تحریمه طریقه﴾

**﴿سوال﴾**: تکبیر تحریمه به کله وائی دلاس دتړلو ځخه مخکی که نه، چی کله لاس و تړی؟ (۱) که امام غوږونوته دلاس پورته کولو ځخه وروسته کله چی نامه ته لاس وړی او په دغه وخت کی تکبیر تحریمه ووائی نولمونځ به ئی ... وی او که نه. (۲) که امام غوږونوته گوتی یووړی او نامه ته درسیلو سره



دتکبیر یو لفظ "الله" او دوئیم لفظ "اکبر" چی کله پر نامه باندی لاس کینیږدی او وو ائی نو لمونځ به ئی صحیح وی او که نه؟ (۳) تکبیر تحریمه کله شروع کړی او کله ئی ختم کړی. (۴) د رکوع او دسُجدی صحیح طریقه څه شی ده. (۵) که امام په لمانځه کی تکبیرونه د سُنت ځخه خلاف و کړی نو شرعی حکم ئی څه شی دی؟

**﴿جواب﴾**: (۱) دتکبیر تحریمه یاتکبیر اُولیٰ او درفع الیدین یعنی دلاس د پورته کولو په حقله دری قولونه دی.

(۱) اول دی لاسونه پورته کړی یعنی دواړه لاسونه دی ترغوږوپوری پورته کړی او تکبیر "الله اکبر" دی ووائی او ځرنگه چی تکبیر ختم سی نو بیادی لاس پرنامه باندی وتړی.

(۲) تکبیر اورفع الیدین دی دواړه یو ځای شروع کړی او یو ځای دی ختم کړی.

(۳) اول دی تکبیر تحریمه شروع کړی او سمدستی دی لاس پورته کړی او یو ځای دی ختم کړی. (بحرالرائق ۱/۳۰۵ دُرمختار مع شامی ۱/۴۶۵)

په دی ذکرسوی دری صورتو کی اولنی او دوئیم صورت افضل دی او دریم صورت ئی هم جائز دی. خو معمول بِهَا نه دی. (هدایه ۱/۸۴)

او په جوهره نامی کتاب کی راغلی دی چی "اصح دادی چی اول دی

لمونځ ګزاره دواړه لاسونه پورته کړی کله چې دواړه لاسونه دغوږونو سره برابر سي يو ځای سی اوورورسيږی نوبيادی تکبير شروع کړی.(جوهره ۱/۹۴

په مسئوله صورت کی ئی لمونځ وسوخودلاس تړل اودتکبيرتحر يمه دځنلهولوعادت ئی غلط دی دادثناء يعنی دسُبْحَانَکَ اللّٰهُمَّ دويلوځای دی دتکبيرويلوځای نه دی.تکبيردلاسودتړلوپوری ختميدل پکاردی.

دلادس دتړلوپوری دځنلهولويوه خرابی داهم ده چې لوړاوريدلو والا اوکوڼ مقتدی کم چې کله دامام ورفع يدين ته وګوری نوتکبيرتحريمه به ووائی نودامام څخه مخکی دتکبيردويلوپه وجه به دده اقتداء اولمونځ صحيح نه وی ځکه چې که دتکبيراولنی لفظ د"اللّٰه"په ويلوکی مقتدی وړانديوالی وکړی يالفظ "اللّٰه"دامام سره شروع کړی خولفظ"اکبر"دامام دختمولوڅخه مخکی ختم کړی نوبيابه ئی هم اقتداء صحيح نه وی.(دُرمختارمع شامی ۱/۴۲۸)نوپه دی وجه إمام ته داعادت پريښوول پکاردی.

﴿جواب﴾(۲):درکوع اودسجدی دتکبيراتوسُنت طريقه داده چې ځنګه رکوع ته راکښته کيږی نوالله اکبردی شروع کړی اوځنګه چې رکوع ته ورسيږی نوختم دی ئی کړی.اوکم خلق چې داسی کوی چې رکوع یاسُجده ی ته ورسيږی بياالله اکبروائی نودادسُنت څخه خلاف خبره ده اودا کار مکروه دی اودوه رقمه کراهيت را ځی.(۱)اول کراهيت ئی ترک دمحل



سو ځکه چې دا تکبيرونه دانتقال دی.يعنی رکوع اوسُجدی ته دنقل کيدلو.چې پکاروه چې دا ورکوع اوسُجدی ته دانتقال په وخت کی ويل سوی وائی ليکن په پورته صورت کی داپاته سو.(۲)کراهيت ئی دبی محل ارادی يعنی کم وخت چې به ئی تکبيرويلوهغه وخت دسبحان ربی الاعلیٰ دويلوؤياد سبحان ربی العظيم ؤو اودتکبيراتووخت نه ؤؤ.دغه وخت تکبيرويل بی محله دی.(منية المصلی ص:۸۸و۹۴ کبيری ص:۴۴۵)

مختصرخبره داده چې دامام داعمل دسُنت څخه خلاف دی نوده ته دسُنت مطابق عمل کول لازمی دی.(فتاوی رحيميه ۱/۲۳۳)

دتکبيرتحريمه څخه وروسته اوپه وترو کی ددُعاء قنوت څخه دمخه، دغه رقم داختريه اول رکعت کی ددريم تکبيرپه وخت کی لاس پورته کولی سی اولاس ايله کول اوبياتړل چيری هم نه دی ثابت.

اختلاف په دی خبره کی دی چې دقرأت دکولوپه وخت کی به لاسونه تړی اوکه به ئی پريږدی.دامام ابوحنيفه رحمه الله تعالیٰ عليه اودامام يوسف رحمه الله تعالیٰ عليه په نيزدلاس د تړلوحکم دی.(ددوئ په نيزدقرأت په وخت کی لاس تړل دقرأت دآدابوڅخه دی)يعنی کله چې دلمانځه دشروع کولو اراده وکړی نوځپل لاسونه به دلستو نوڅخه راباسی اوبيابه ئی دغوږونوخواته سيده پورته کوی.اوبيادی والله لفظ ته دملورکولو څخه

بغیر تکبیرو وائی. نیت به ئی کړی وی. اوراسته لاس دی پر چپه لاس باندې
دنامه لاندې کښیږدی. د تکبیر تحریمه څخه وروسته دی بی له ځنډه ثناء یا
سُبحٰنکَ اللّٰھُمَّ ووائی. (فتاوی رحیمیه ۳/۳۷ بحواله نورالایضاح ص: ۷۰
الجوهرة النیرة ۱/۵۰)

## ﴿امام ته تکبیرونه څرنګه ویل پکار دی؟﴾

اکثره امامان داسی وی چی کله دجُمعی لمونځ ورکوی نو تکبیرات انتقالیه دحرکت انتقالیه سره نه وائی. بلکه کله کله خو دمنتقل کیدلو څخه وروسته ئی هم وائی. او کله کله ئی دوئیم رکن ته د رسیدلو څخه مخکښې مخکښې ختم کوی. مثلاً دقیام دحالت څخه په منتقل کیدلو رکوع ته ځی نو بعضی امامان درا کښته کیدلو څخه وروسته الله اکبر وائی او بعضی امامان دومره ژر اَللّٰهُ اَکْبَر طوائی چی رکوع ته په صحیح طریقه درسیدلو مخکی دَاللّٰهُ اَکْبَر آواز ختم سی. او دغه رقم سُجدی ته دتلو په وخت او دسُجدی څخه دوئیم رکعت ته دراولاړیدلو په وخت کی هم کوی.

داخبره دی ښکاره وی چی په دی دواړو صورتو کی دتکبیر پوره سُنت نه سو پوره. کامل او پوره سُنت به هغه وخت اداء کیږی چی کله چی دیوه رُکن څخه دوئیم رُکن ته دتلو په وخت کی یو ځای دار کانو سره تکبیرات شروع کړی او چی څنګه وبل رُکن ته ورسی نو دتکبیر آوزدی بند



کړی. او کله چی امام اَللّٰهُ اَکْبَر ط داسی وائی چی ودوئیم رُکن ته درسیدلو وروسته هم تر څه وخته پوری دده دتکبیر آواز راځی. نو دومره تکبیر اُوږدول مکروه دی. (مسائل سجده سهو ص: ۱۷ بحواله کبیری ص: ۳۱۳)

بعضی امامان دتکبیر په ویلو کی ډیره بی احتیاطی کوی او دَاللّٰهُ اَکْبَر ط ویلو پر ځای بانده الله اکبار وائی. یعنی د **با** او د **را** په مابین کی **الف** زیاتوی. دغه رقم بعضی امامان دالله اکبر په شروع کی مد پیدا کوی. او آللّٰهُ اَکْبَر ط وائی. دا دواړه صورتونه بالکل غلط دی. په دی دواړو صورتونه کی لمونځ بالکل فاسدیږی او که په تکبیر تحریمه کی ئی داسی وویل نو دلمانځه شروع کول به بالکل صحیح نه وی. (مسائل سُجده سهو ص: ۱۷ بحواله کبیری ص: ۲۳)

علامه شامیؒ دحُلیه او نورو کتابو څخه نقل کړی دی چی په تکبیر کی اسم ذات "الله" او د "اکبر" **الف** کشول لمونځ فاسدوی. او **لام** دومره اوږدول چی بل "**لام**" کی پیداسی هم مکروه دی. لیکن مُفسدنه دی. دغه رقم "**ها**" کشول هم مکروه دی د **با** دمد په فاسدیدلو کی اختلاف دی او په راباندی پیښ کشول مُفسدنه دی.

خو دجهل دغلبی په وجه دمتأخرینو دافیصله ده چی دإعراب او دمد غلطی مفسدنه دی البته که څوک دتنبیه باوجود دااصلاح کوشش نه کوی نو دده لمونځ نه کیږی او چی داسی غلط ئی وائی نو دی امام جوړول په هر

صورت کی ناجائز دی.البته که څوک صحیح ویونکی موجود نه وی نوبیا پرواه نه کوی.(احسن الفتاوی ۳/۲۲۴)

## ﴿په تکبیر تحریمه کی عامه غلطی﴾

بعضی وخت مقتدی داسی غلطی کوی چی لمونځ ئی فاسدسی.مثلاً دا چی مقتدی دامام دتکبیرتحریمه اَللّٰهُ اَکْبَر طویلو څخه دمخه مقتدی اَللّٰهُ اَکْبَر ط ووائی یادامام د لفظ اَللّٰهُ دویلو څخه دمخه مقتدی اَللّٰهُ لفظ ووائی په دی دواړوصورتو کی هیڅ د لمانځه شروع کیدل صحیح نه دی.داسی مقتدیانو ته پکاردی چی دوئ دسره اَللّٰهُ اَکْبَر ط ووائی اوپه امام پسی نیت وتړی.(مسائل سُجده سهو ص:۷۴ بحواله صغیری ص:۱۴۳)

اکثره مقتدیان مولیدلی دی چی که امام رکوع ته ځی نو دهغه سره په رکوع کی دشریکیدلو لپاره سیده نه دریږی او اَللّٰهُ اَکْبَر ط ووائی اورکوع ته ولاړ سی.اوداسی ځی چی دالله اکبر آوازئی چی رکوع ته ورسیږی ختم سی.دارقم په لمانځه کی شریکیدل نه دی صحیح.دتکبیرتحریمه څخه دخلاصیدو پوری دریدل فرض دی. یعنی په سیده ولاړه کی دی دااَللّٰهُ اَکْبَر ط آوازختم کړی نو ددی وروسته دی ورکوع ته کښته سی. که دتحریمه تکبیرات دقیام په حالت کی ختم نسی نودده په لمانځه کی شاملیدل نه سو صحیح .(کفایت المفتی ۳/۲۹۱)



سُنت طریقه داده چی په حالت قیام کی دی تکبیرتحریمه ووائی او بیادی فوراًدوئیم تکبیرووائی اوبیادی رکوع له دی ځی.دتکبیرتحریمه څخه وروسته دی لاس نه تړی.په رکوع کی دامام سره لږ اندازه شراکت هم کافی دی.حتٰی تر داسی حالت پوری چی مقتدی په داسی حالت کی رکوع ته کښته سی چی امام لادرکوع څخه نه وی سم راپورته سوی اودمقتدی لاسو نه تر رکوع پوری ورسیدل نو دی په دا رکعت کی شامل سو. ځکه چی دیوی تسبیح په اندازه باندی په رکوع کی پاته کیدل واجب دی ددی څخه وروسته دی باقی تسبیحات پریږدی اودامام اتباع دی وکړی.(احسن الفتاوی ۳/ ۲۸۸)

## ﴿په تکبیر کی دجهرمقدار﴾

**﴿سوال﴾**:دامام بعضی تکبیرونه دومره په زوره ویل چی دمسجد څخه دباندی خلق ئی پرسړک باندی هم واوری اوبعضی تکبیرونه دومره قرارویل چی ددویم صف والائی هم نه واوری.داڅنګه دی؟

**﴿جواب﴾**:امام ته پکارده چی په قرأت اوجهر کی دمابین لاره اختیاره کړی اود حاجت په اندازه ورته په زوره کول پکاردی.اودتکبیرونوترمابین دافرق اوتفاوت چی بعضی جهر بنه په داسی افراط باندی اداء کول اوبعضی د حاجت د اندازی څخه هم کم اداء کول مذموم اوبی اصله دی.په شریعت کی ددی هیڅ اصل نسته صرف په سلام کی فقهاؤ دالیکلی دی چی دوئیم

سلام دی داولنی سلام شخه لږیه کښته آواز ووائی اوددی شخه علاوه بل پر
خای هم په جهر کی ددرجاتوفرق نسته .(فتاوی دارالعلوم ۲/ ۱۸۰بحواله رد
المختار ۱/ ۴۹۷، ۱/ ۴۴۳فصل فی القرأة باب صفة الصلوة ۱/ ۴۴۳)

امام ته په زوره تکبیرویل سُنت دی.نوپه دی وجه ددی په پر ینبوولو خوبه سجده سهوه نه وی پر البته دسُنت دپر ینبوولو گناه به باندی وی. او د جهر حددادی چی تول صف ته آواز وررور سیږی.(احسن الفتاوی ۳/ ۲۶۶بحواله ردالمحتار ۱/ ۴۹۹) یعنی﴿وَلَاتَجۡهَرۡ بِصَلَاتِکَ وَلَا تُخَافِتۡ بِهَاوَابۡتَغِ بَیۡنَ ذٰلِکَ سَبِیۡلًا﴾(سوره بنی اسرائیل ۱۲ ارکوع)﴿مترجم﴾

## ﴿په قرأت کی دجهر مقدار﴾

**﴿سوال﴾**:امام به په تراویحووغیره اوجهری لمنځونه کی قرأت په څومره اندازه کی په زوره وائی؟

**﴿جواب﴾**:افضله اوبهترینه خبره داده چی امام دی په جهری لمنځوکی بی له تکلف شخه په دومره لوړآوازباندی ووائی چی مقتدی ئی واوری.ددی شخه زیات تکلف کول مکروه اومنع دی.دالله جل شانه ارشادگرامی دی "وَلَاتَجۡهَرۡ بِصَلَاتِکَ وَلَاتُخَافِتۡ بِهَاوَابۡتَغِ بَیۡنَ ذٰلِکَ سَبِیۡلًا" (سوره بنی اسرائیل ۱۲رکوع) **ترجمه**:اومه ته په خپلو لمنځوکی ډیرپه زوره آوازباندی وایه اونه بالکل په قراره.ددی په مابین کی منځنی لاره اختیار کره.



مفسرینؒ فرمائی چی په لمانځه کی درمیانی قرأت کول پکاردی خکه په دی سره پرزره باندی اثر کیږی اودومره په زوره دی ئی نه وائی چی قاری اوسامع دواړو ته تکلیف وی خکه چی په دی سره به دزړه په حضور کی خلل راسی. (خلاصة التفسیر ۳/ ۶۷،تفسیرفتح المنان ۵/ ۹۶)

فقهاؤ کرامو په زوره ویلو کی دوی خبری ضروری بولی.(۱)داده چی ویونکی دی په خپل خان باندی غیرمعمولی زورنه راولی.(ولی چی دامکروه دی) (۲)داچی نوروخلقوته به تکلیف نه وی.مثلاً که دتهجدپه وخت کی څوک بیده وی یا څوک په خپلوخبروکی اخته وی اوته ورسی ورسره و دربیږی اودومره په زوره قرأت شروع کړی چی دهغوی په کارکی خلل راسی نوداهم مکروه دی.ددی دواړوخبروشخه ورروسته دریمه خبره داده چی د جَمُعی دکمی اودزیاتوب لحاظ ساتل اوددی نطابق قرأت کول.مثلاً مقتدیانودری صفونه دی نوته دومره په لوړ آوازوایه چی تردریم صف پوری آوازوررسیږی.

دفقیه ابوجعفرؒ داقول دی چی څومره ئی په لوړآوازئی ووائی بنه دی. خوپه دی شرط چی پرویونکی باندی ستړی والی نه راولی اوبل چاته تکلیف نه راولی.خودنوروفقهاؤ داقول دی اوراجح هم دغه قول دی چی دضرورت په اندازه دی آوازدی لوړ روی.یعنی صرف دُومره دی آوازلوړ روی چی صرف

دریم صف ته رسیږی البته که صفونه زیات ؤونو آوازنورهم لو ړولای سی په
دی شرط چې په ځان زیات زورنه راولی.(فتاوی رحیمیه ۱/۳۵ بحواله
طحطاوی علی مراقی الفلاح ص:۱۳۷،درمختار ۱/۴۹۷ فصل فی واجب
الصلوٰة) مجمع الانهر ص:۱۰۲،عالمگیری ۱/۷۳)

## ﴿امام دی قومه اوجلسه په اطمینان سره کوی﴾

**﴿سوال﴾**: زمونږامام صاحب درکوع څخه وروسته قومی ته لاسیده دریدلی نه وی سُجدی ته ځی.اوچی ښنگه سَمِعَ اللّٰهُ لِمَنْ حَمِدَهٗ ووائی نواَللّٰهُ اَکْبَرُ ووائی په مابین کی لږهم نه دریږی.ساهم نه اخلی.دغه رقم دسُجدی څخه وروسته دجلسی په حالت کی کوی اوهم داحالت ئی دسُجدی ته دتلواود سُجدی څخه دواپس راتک دتکبیرونودی.په دی تکبیرونو کی وقفه نه کوی.مقتدیان چی ده ته گوری هغه هم داسی کوی.ددی شرعاً څه حکم دی؟

**﴿جواب﴾**: داسی حالت اختیارول غلط کاردی.لمونځ مکروه کوی.او قابل دراگرځولو دی.قومه اوجلسه په اطمینان سره اداکول ضروری دی.

د دُرمُختاردعبارتو داحاصل دی چی درکوع څخه وروسته سیده ودریږی ځکه چی داقومه سُنت ده اودی ته واجب اوفرض هم ویل سوی دی.بیاچی کله ځمکی ته کښته کیږی نواَللّٰهُ اَکْبَرُ دی ووائی اودواړه زنګونه دی پرمځکه باندی کښیږدی". په عبارت کی لفظ "ثُمَّ" راغلی دی.نوددی



مطلب دادی چی دوقفی سره دی بنه په قراره سره سُجدی ته ځی.تکبیردی وائی او کښته کول دی شروع کړی.داتکبیردی هغه وخت ختم سی کله چی راکښته کیدل ختم سی اوتندی پر مځکه باندی کښیږدی.بیادی ددوا ړو سُجدوترمابین په آرام سره کښینی.یعنی دومره وخت دی کښینی چی سُبْحَانَ اللّٰهِ پکښی ووائی.دحضرت محمد ﷺ څخه دقومی اوجلسی طریقه حضرت بی بی عائشتی رضی اللہ تعالیٰ عنهابیانوی اووائی چی کله به نبی درکوع څخه خپل سرمُبارک راپورته کړونوسیده به ودریدی.بیابه سُجدی ته ولا ړی.دغه رقم به ئی دسُجدی څخه وروسته خپل سرمُبارک راپورته کړی.اوبنه برابربه سیده ودریدی.نوروسته به ئی بیادویمه سُجده کوله.(مشکوٰة شریف ۱/۷۵)

دغه رقم حضرت ابوحُمیدساعدی رضی اللہ تعالیٰ عنه دحضرت محمد ﷺ څخه دقومی طریقه بیان کړی ده.اووائی چی کله به نبی کریم ﷺ درکوع څخه سرمُبارک راپورته کړی نوترهغه وخته به ئی انتظار کاوی چی دملاتیلونه به ئی سره کښیوتل:(مشکوٰة شریف ۱/۷۵)

دحضور ﷺ دلمانځه سره سم خپل لمونځ برابرول پکاردی.هغه ﷺ فرمائی چی ښنگه تاسوپه لمانځه کی ماوینی هم هغسی تاسو خپل لمونځ هم کوی.

که مونږ په خپله دحضور ﷺ دلمانځه په رقم داداء کولو کوشش نه کؤو او دسُنت څخه خلاف لمونځ کؤو نولمنځونه به مونه قبلیږی. اوراځو خول به وغواړی. په حدیث شریف کی راځی چی نبی کریم ﷺ دمسجدپه یوه کُنج کی ناست ؤو. یوسړی راغلی اولمونځ ئی وکړی بیاحضرت محمد ﷺ ته راغلی اوسلام ئی وکړی. حضور ﷺ وعلیکم السلام ورته وویل او ورته ئی وویل چی ورسه بیرته دی لمونځ راوګرځوه. تالمونځ ندی کړی. هغه سړی بیرته ولاړی اوبیائی لمونځ وکړی. دلمانځه څخه وروسته بیاراغلی اوپرنبی کریم ﷺ باندی ئی سلام وکړی. نبی کریم ﷺ ورته وعلیکم السلام ورته وویل اوبیائی ورته وویل چی ورسه بیرته دی لمونځ وکړه تالمونځ ندی کړی. دغه سړی دری واره داسی وکړه. خوده نبی کریم ﷺ ته عرض وکړی چی ای دالله رسول ﷺ زه خوددی څخه زیات ښه لمونځ نسم کولای. تاسوئی را وښوی. حضرت محمد ﷺ ورته وفرمایل چی کله ته لمانځه ته ولاړسی نو اول په ښه شان سره اودس وکړه بیاپر قبله باندی مخامخ ودریږه بیاالله اکبرؕ ووایه. بیاچی څومره قرآن دی زده وی په آسانی ئی کی ووایه. دقرآن مجید ویلووروسته بیارکوع ته کښته سه. اوبیاپه آرام سره رکوع وکړه بیادرکوع څخه راپورته سه تردی چی په آرام سره ودریږه بیاسُجدی ته ولاړسه اوپه آرام سره ودریږه بیاسُجدی ته ولاړسه اوپه آرام سره سُجده وکړه بیاد



سُجدی څخه راپورته سه. او ښه په آرام سره رکوع اوهریورکن اداء کوه.
(مشکوٰة شریف ص:۸۳)

دفقهی او دحدیثو مبارکو تصریحاتو ته چی وګوری نوپه هغه کی په وار واراباندی دآرام لمونځ کولو هدایت سوی دی.

ستاسو امام صاحب که په آرام سره رکوع، سُجده، قومه اوجلسه نه کوی، سمع الله لمن حمده او الله اکبرؕ یادوو سُجدو الله اکبرؕ په یوه ساوائی نودی ددغه احادیثو اوفقهی خلاف کار کوی او داکار کول سراسربی ادبی ده اومکروه دی. په مشکوٰة شریف کی راغلی دی"چی بلترین او دټولو څخه زیات غل هغه دی څوک چی دخپل لمانځه څخه غلا کوی، صحابو کرامو دنبی کریم ﷺ څخه پوښتنه وکړه چی یارسول الله! په لمانځه کی څنګه غلا کوی؟ حضرت محمد صلی الله علیه وسلم وفرمایل چی په لمانځه کی غلا دا ده چی رکوع اوسُجدی سمی نه اداء کوی. اوبیائی ارشادوفرمائی، الله پاک دهغه چالمانځه ته نه ګوری څوک چی رکوع اوپه سُجده کی خپله ملاسمه اوسیده نه ساتی". (مشکوٰة شریف ص:۸۳)

حضرت محمد ﷺ یو سړی په لمانځه کی ولیدی چی رکوع او سُجده ئی پوره نه اداء کوله نوئی ورته وفرمایل ته دالله پاک څخه نه بیریږی؟ که ته په دی عادت کی مړسوی نوپر دین محمدی به ستامرګ نه وی سوی.

حضرت محمدصلی الله علیه وسلم فرمایلی دی چی ستاسو لمونځ د یوه هم ترهغه وخته پوری نه صحیح کیږی ترڅوچی درکوع څخه وروسته سیده نه وی ولاړ.اوخپله ملائی نه وی سیده کړی.اودده هراندام پرخپل خپل ځای باندی قرارسوی نه وی.

دغه رقم حضرت محمدصلی الله علیه وسلم وفرمایل کم سړی چی د دوسجدوپه مابین کی خپله ملاسیده نه ساتی اونه ئی سیده کوی نودهغه لمونځ نه پوره کیږی.

حضرت محمدصلی الله علیه وسلم دیوه لمونځ کونکی په څنګ کی تیرسونوڅه ګوری چی دغه سړی ارکان اوقومه اوجلسه سم نه اداء کوی نوئی ورته وفرمایل چی که ته په دی عادت کی مړسوی نودقیامت په ورځ به زماپه اُمت کی نه راکښینی.

منقول دی چی کله یومؤمن بنده لمونځ په ښه طریقه اداء کوی اودده رکوع اوسُجده په ښه طریقه اداء کیږی نودده لمونځ تروتازه اونورانی وی او ملائکه دغه لمونځ آسمان ته وړی.دغه لمونځ خپل لمونځ ګزارته دُعاکوی او وائی چی الله تعالٰی دی ستاحفاظت وکړی لکه څرنګه چی تازماحفاظت وکړی اوکه چیری دَی لمونځ په ښه طریقه نه اداء کوی او دَی درکوع او سُجدی قومی اوجلسی اونوروارکانواداکول پرخپل ځای نه کوی نودغه



لمونځ تک تورشی ځنی جوړیږی اوملائکه نفرت ځنی کوی.اودغه لمونځ آسمان ته نه وړی.اودغه لمونځ دده ته ښراکوی او وورته وائی چی الله پاک دی داسی خوار کړه لکه زه چی دی خوار کړم.(فتاوی رحیمیه ۴۵/۳)

## ﴿دامام صرف دښائسته آوازپیدا کیدلوپاره غاړه تازه کول﴾

**﴿سوال﴾**: که په فرضو لمنځوکی امام بی له څه عُذره غاړه تازه کوی کم چی صرف اوصرف دآوازدښائست لپاره وی اوددی تعداددری واره ته ور سیری نوددی غاړی تازه کولوپه وجه سره دده لمونځ فاسدیږی اوکه نه؟

**﴿جواب﴾**: دُرمختارپه عبارت کی دی چی دآوازدښائسته کولولپاره په غاړه تازه کولوسره لمونځ نه فاسدیږی.هغه که تردری واره زیات هم وی.

(فتاوی دارالعلوم ۶۵/۴ بحواله دُرّمُختار ۴۷۸/۱ باب مایُفسدالصلوٰة)

## ﴿دثناء څخه بغیردقرأت کولوحکم﴾

**﴿سوال﴾**: که یوامام دتکبیرتحریمه څخه فوراًدثناء(سُبحانَکَ اللّٰهُمَّ الخ)ویلو بغیرالحمدلله شروع کړی نوڅه حکم ئی دی؟

**﴿جواب﴾**: دثناء یعنی د(سُبحانَکَ اللّٰهُمَّ الخ) دنه ویلوعادت جوړکړی وی نوداپیربدحرکت دی.باقی ددی څخه په لمانځه کی څه کراهیت نه راځی.له دی وجهی چی دثناء یعنی(سُبحانَکَ اللّٰهُمَّ الخ)ویل محض

مستحب دی اود مستحبودترک شخه په لمانځه کی څه قباحت نه راځی (مکمل مدلل مسائل تراویح ص:۷۰)

## آیاامام به دمقتدیانو دثناء انتظار کوی

**سوال**: امام ثناء(سُبحانکَ اللّٰهُمَّ الخ )ووائی اوقرأت شروع کړی اوکه د مقتدیانو(سُبحانکَ اللّٰهُمَّ الخ )ویلوته انتظارو کړی؟

**جواب**: انتظاردی نه کوی.(خپل قرأت دی شروع کړی)(فتاوٰی دار العلوم ۲/۱۶۴ بحواله ردالمختارباب صفة الصلوٰة ۱/۴۷۱)

## په لمانځه کی دبسم الله حکم

**سوال**: پرامام باندی په هرر کعت کی دبسم الله دویل دالحمدلله اوسورت سره واجب دی او که نه؟اودامام اودمنفردلپاره دحنفی مذهب په مطابق مستحب صورت څه دی؟

**جواب**: دردالمختارباب صفة الصلوٰة ۱/۴۵۷شخه دامعلو میږی چی امام لره دالحمدلله شخه دمخه دبسم الله ویل سُنت دی.اوبعض ئی دوجوب قائل دی.

اودسورت شخه دمخه اګرچه سنت نه دی لیکن مکروه هم نه دی بلکه مستحب اوبهتره دی.(فتاوٰی دارالعلوم ۲/۱۸۴)



## په قرأت کی دترتیب لحاظ

دسورتوپه ترتیب سره ویل واجب دی.نوپه اول رکعت کی تَبَّتْ یَدَا اوپه دویم رکعت کی اِذَاجَآءَ ویل صحیح نه دی.اوپه فرضوکی دکوچنی سورت فاصله پریښوول دمثال په توګه په اول رکعت کی سوره اِذَاجَآءَ اوپه دویم رکعت کی قُلْ هُوَاللّٰهُ اَحَدُویل مکروه دی.اوپه نفلوکی داسی کول بیا پرواه نه کوی.اوپه یوه رکعت کی دمثال په توګه سوره مزمل ووائی اوبیا سوره اخلاص قُلْ هُوَاللّٰهُ اَحَدُ ملګری کړی داسی کول مکروه دی.اودارقم په دویم رکعت کی معوذتین یعنی په یوه رکعت کی دوه سورتونه ویل هم بنه نه دی.اګرچه لمونځ صحیح دی.(فتاوٰی دارالعلوم ۲/ ۲۲۳ بحواله ردالمختارفصل فی القرأة ۱/۵۱۰)

## دنیمائی آیت شخه دقرأت شروع کول شنګه دی؟

دارقم خولمونځ صحیح دی لیکن بایدداسی و نکړی.ولی چی دا کار یونامشروع اودقاعدی خلاف کاردی.بعضوعلماؤ خودنیم سورت ویل هم مکروه بللی دی نودآیت دنیمائی شخه ویـل چیری مناسب کاردی؟ (فتاوٰی دارالعلوم ۲/۲۴۰ بحواله غنیة المستلمی ص: ۴۶۲)



## ﴿که امام په جهري لمونځ کي سراًويل و کړل نو...﴾

﴿**سوال**﴾: که چيري په جهري لمونځ کي امام دوه يادري آيتونه قرارؤويل، دفتحي ورکولوروسته ياده ته پخپله ورپيادسو. اوس نو ټول قرأت له سره جهراًووائي اوکه ئې دهغه ځاي څخه شروع کړي دکم ځاي څخه چي ورته ورپيادسو. اوسُجده سهوبه کوي او که نه؟

﴿**جواب**﴾: پرکم ځاي چي ئې ورپيادسو دهغه ځاي څخه دي په زوره شروع کړي. (فتاوی محموديه ۱۴۷/۲) په جهري لمنځو کي دري آيتونه په خطاسره په قرار آوازويل سجده سهولازمي وي. اودارقم په سِري يعني په قرار لمنځو کي دپزوره ويلوهم دغه حکم دي. الحمدلله شريف که ئې چيري قرار وويل نوپه جهري لمونځ کي دي دويم وارپه زوره ووائي اوبيادي سُجده سهو وکړي. که ئې چيري الحمدلله په زوره نه وويل صرف سورة ئې ووائي او سُجده سهوئې وکړه نوهم لمونځ صحيح کيږي. (فتاوی محموديه ۱۵۰/۲)

## ﴿امام ته دفتحي ورکولو تفصيل﴾

که چيري امام ددومره قرأت کولوروسته خطاوزي چي دهغه قرأت کولوروسته رکوع کول مناسبه وه نوبياخودي امام رکوع و کړي. که چيري د هغه اندازي څخه ترمخه خطاوزي نوبياامام ته داپکارده چي بل هغه سورت ائي چي دده يادوي. هلته دي نه دريږي. امام ته دهغه ځاي بارباروېل مکروه



دي پرکم ځاي چي دي دريدلي ؤو. اومقتدي ته پکارده چي په فتحه ورکولو کي دي چابکي نه کوي. بلکه ورته ودي دريږي. چي امام به رکوع وکړي يابه بل سورت چي دده يادوي ووائي اويابه هغه ځاي چي دي کي دريدلي دي زده کړي اوپرمخ به ئې ووائي. ژرفتح ورکول دمقتدي په حق کي مکروه ده.

کله چي امام نه رکوع و کړي اونه بل سورة ووائي اونه هغه ځاي سم کړي په کم ځاي کي چي دي دريدلي دي نوبيادي فتح ورکول سي. هغه کي ئې دري آيت ويلي وي او که نه. ديوه هم لمونځ نه فاسديږي. نه دامام اونه دمقتدي. (**فتاوی محموديه جلد ۲ صفحه: ۱۸۵ بحواله طحطاوي صفحه: ۱۸۳**)

## ﴿دامام سورتونه خلاف دترتيب څخه ويل﴾

﴿**سوال**﴾: امام صاحب په اول رکعت کي سورة کافرون ووائي اوپه دويم رکعت کي ئې سورة کوثراوياسورة قريش ووائي کم چي دقرآن دترتيب څخه خلاف دي نو آيادالمونځ صحيح کيږي او که نه؟

﴿**جواب**﴾: دسورتوپه ترتيب سره ويل دقرأت دواجباتو څخه دي. دلمانځه دواجباتو څخه نه دي. له دي وجهي داسي ويل سُجده سهونه لازم وي. هواپه قصدسره داسي ويل مکروه دي. که چيري ئې په هيره داسي ووائي نوداپرواه نکوي اونه مکروه دي. (فتاوی رحيميه ۲۴۶/۱ بحواله شامي ۵۱۰/۱)



## ﴿دمقتدی په فتحه ور کولو دامام دسُجدی آیت ویل﴾

امام صاحب دسجدی آیت هیرسو او مقتدی ورته ووائی او فتحه ئی ور کړه او بیاامام هغه آیت ووائیپ او سجده ئی و کړه نو دایوه سُجده کافی ده او په دی صورت کی دوی سُجدی نه لازمیږی.(فتاویٰ رحیمیه ۳/ ۴۹)

## ﴿دواجب قرأت اندازه﴾

﴿سوال﴾: دقرآن مجیددری کوچنی آیتونه کم دی کم چی په یوه رکعت کی ئی ویل کافی دی؟آیت په ګردی ۞ دائره باندی دی او که پر ج،ص، ز، ط اونورونښانوباندی دی.دیوغټ آیت په مقابله کی کوچنی دری آیتونه کافی دی او که نه؟

﴿جواب﴾: دلمانځه دواجباتو څخه داهم دی چی دسورة فاتحی وروسته دی دری کوچنی آیتونه ووائی اویادی یو غټ آیت ووائی کم چی ددی کوچنی دری آیتوسره برابروی.

کوچنی سورت چی په هغه کی دری کوچنی آیتونه دی هغه "اِنَّا اَعۡطَیۡنٰکَ الۡکَوۡثَرَ" سورة دی.دغه سورة اویا دِی ددی په مثال سورت د الحمد للّٰه څخه وروسته ووائی نوواجب ئی اداکیږی.او آیت هغه بلل کیږی پر کم ځای چی ګردی نښان وی.اودلوی آیت مثال آیة الکرسی شریف ده اویا آیة المداینة.(یٰاَیُّهَاالَّذِیۡنَ اٰمَنُوۡااِذَاتَدَایَنۡتُمۡ.... البقرة۲۸۲)اونورداسی آیتونه دی.او



دکوچنی آیت مثال(ثُمَّ نَظَرَ ۞ ثُمَّ عَبَسَ وَبَسَرَ ۞ ثُمَّ اَدۡبَرَ وَاسۡتَکۡبَرَ ۞)دی.

(فتاویٰ دارالعلوم ۲/ ۲۴۵بحواله ردالمحتارباب صفة الصلوٰة ۱/ ۴۲۷)

په لمانځه کی دیوه آیت په اندازه باندی قرأت کول فرض دی.

الحمد لله اوبل یوسورت یادری آیتونه یایواُو ږدآیت ویل واجب دی.په کوریا داقامت په وخت کی طوال مفصل سورتونه ویل په لمانځه کی سُنت دی.

یعنی دسهار اوماپښین په لمونځو کی دسورة حجرات څخه بیادسورة بروج تر آخرپوری هر یوسورة چی ووائی اودمازیګراوماخوستن په وختونو کی دسورة بروج څخه بیا ترلَمۡ یَکُنِ الَّذِیۡنَ پوری اودماښام په وخت کی دلم یَکُنِ الَّذِیۡنَ څخه بیاتر والناس پوری.اوددی څخه علاوه کله کله دخاص سورتونود ویلو ثبوت هم راغلی دی لیکن دمقتدیانودحال اودوقت رعایت ساتل لازمی دی.

(فتاویٰ محمودیه ۲/ ۱۵۸ بحواله شامی ۱/ ۳۶۰)

## ﴿په لمانځه کی دمختلف سورتورکوع ګانی ویل﴾

﴿سوال﴾: که چیری یو امام داسی قرأت ووائی دمثال په توګه دامام په هره سپاره کی یوه یوه رکوع یاده ده اوپه هرلمانځه کی یوه رکوع ووائی.اودارقم په ترتیب سره هغه ټولی رکوع ګانی ختم کوی.اوبیادختم کیلو څخه وروسته بیرته ئی دسره شروع کوی.داسی کول جائز دی او که نه؟

﴿جواب﴾: دداسی ویلوسره لمونځ صحیح کیږی.لیکن افضله اوبهتره

خبره داده چې په هر رکعت کې پوره سورة ووائي.په داسې طريقه سره کم چې فقهاؤليکلې دي.چې په سهاراوماپښين کې طوال مفصل اودماذيګراو ماخوستن په وخت کې اوساط مفصل اوپه ماښام کې دقصارمفصل څخه دې يوسورة ووېل سې.(**فتاوٰى دارالعلوم ۲۴۶/۲بحواله عالمګيرى مصرى ۷۲/۱**)

## ﴿دلمانځه په قرأت کې دنبي کريم ﷺ عادت﴾

دمختلفووختود لمنځودنبي کريم ﷺ عادت داؤوچې په دسهارپه لمانځه کې ئې اُوږدوالي په مازيګرکې ئې سپک والي اوپه ماښام کې لنډوالي يعني قصارمفصل ويل اوپه ماخوستن کې اوساط مفصل ويل.

"مُفصل"دقرآن شريف دآخرى منزل وسورتونوته وائي يعني دسورة حِجُرڅخه ونيسى بيادقرآن مجيدترآخره پورې.بياددې هم درې حصې دي. دسورة حجرات څخه بياترسورة بروج پورې سورتونوته طوال مفصل وائي. او دسورة بروج څخه بياترسورة لَمْ يَكُنِ الَّذِيْنَ پورې سورتونوته اوساط مفصل وائي اود لَمْ يَكُنِ الَّذِيْنَ څخه بياترآخرپورې قصارمُفصل ورته وائي.

(معارف الحديث ص: ۲۵۷)

## ﴿دامام خلافِ سُنت قرأت کول﴾

**﴿سوال﴾**:دسهاراوماپښين په لمنځوکې دسورة حُجرات څخه بياترسورة بروج پورې اودما زيګراوماخوستن په لمنځوکې دسورة والطارق څخه



بياترلَمْ يَكُنِ الَّذِيْنَ پورې اودما ښام په لمانځه کې دسورة زلزال څخه ترسورة الناس پورې اوپه وتروکې سبح اسم ربک،سورة القلم،سورة الکافرون، سورة اخلاص ......ددې سورتوداسې ويل سُنت دي اوکه مُستحب؟

که چيرې يوامام دپورته ذکرسوي سورتو څخه علاوه بل کمه رکوع يا درې څلورآيتونه هسې ديوځاى څخه ووائي نودغه امام تارک السُنت دي اوکه نه؟اوددې سورتوپه نه ويلوکې دلمانځه په ثواب کې څه کمي کيږي او که نه؟

**﴿جواب﴾**:هواپه دغه ترتيب سره په لمانځه کې دغه سُورتونه ويل سُنت دي ليکن مؤکدسُنت نه دي.ددې پرځاى بله رکوع ويل هيڅ پرواه نکوي. ليکن دا خلاف داولٰى څخه دي.(کفايت المفتي ۳۰۷/۳)

## ﴿دقرأت آخرى لفظ درکوع دتکبيرسره يوځاى کول﴾

**﴿سوال﴾**:دامام صاحب دسورة فاتحې څخه وروسته دسورة يادآيت په آخرى لفظ باندې نه دريدل بلکه دالله اکبرسره وصل کول اورکوع ته تلل مثلاً وَاللّٰهُ الْمُسْتَعَانُ عَلٰى مَاتَصِفُوْنَ اللّٰهُ اَکْبَرُ دسُنت مطابق دي اوکه نه؟

**﴿جواب﴾**:که آخرى لفظ ئې په ثاباندې ختم سي نودادرکوع سره يو ځاى وصل کول بهتردي.اوکه داسې نه وي نووقف کول اوبياالله اکبرويل اولٰى او بهتردي.(فتاوٰى محمودية ۲۶/۲ بحواله شامي ۳۳۱/۱)

## ﴿دسَمِعَ اللهُ لِمَنْ حَمِدَهٗ صحیح اداکول﴾

﴿سوال﴾: که امام صاحب سَمِعَ اللهُ لِمَنْ حَمِدَهٗ داسی ووائی چی هُوْلِیْمَنْ رقم آواز راوزی نو آیاداصحیح دی او که نه؟

﴿جواب﴾: دقرأت په لحاظ داسی ویل غلط دی او صحیح نه دی. دقرأت په قاعده کی دی چی په ضمه او کسره کی دی صرف دواو او د یاء یوئی راسی خودپیش څخه دی صریح واؤاودزیر څخه صریح یاء نسی جوړه. یعنی که هُوْ لِیْمَن وویل سی نودابالکل غلط دی. پکاردی چی امام سَمِعَ اللهُ لِمَنْ حَمِدَهٗ ووائی. اوداسی قرأت څخه دی ځان وساتی. (فتاوٰی دارالعلوم ۴/۸۸)

## ﴿دامام دخبرولو طریقه﴾

﴿سوال﴾: که دامام څخه سهواًآخری قعده پاته سوه او امام قیام ته نژدی سو نومقتدی ته سبحان الله ویل او اوریدل اولٰی دی که کبنینتل اوسبحان الله ویل؟

﴿جواب﴾: کبنینستل اوبیاسبحان الله ویل اولٰی دی. داسی جزئیه مود ستر گو څخه نه ده تیره سوی. لیکن دواړه رقم ویل صحیح دی (فتاوٰی دارالعلوم ۴/۴۱۹)

## ﴿دامام په دوئیم رکعت کی قرأت اُوږدول﴾

﴿سوال﴾: امام صاحب دسهارپه لمانځه کی داول رکعت څخه په دویم رکعت کی قصداًدوه دری آیتونه اُوږده کړه (زیات ئی وویل) په دی صورت کی لمونځ بلاکراهیته صحیح دی او که نه؟



﴿جواب﴾: په دی صورت کی لمونځ صحیح دی بی له دخه کراهیته. په شامی نومی کتاب کی راغلی دی چی په غټوسورتونو کی ددریو آیتو څخه زیاتوب ته څه اعتبارنسته. البته په کوچنی سورتونو کی ددروآیتونوزیات والی مکروه تنزیهی دی. (فتاوٰی دارالعلوم ۲/۲۴۸ بحواله شامی ۱/۵۰۷)

## ﴿په دوئیم رکعت کی اُوږدوالی ته دڅه شی اعتباردی؟﴾

﴿سوال﴾: په لمانځه کی داول رکعت څخه په دویم رکعت کی زیات قرأت کول مکروه دی. دا دآیتونوپه حساب سره دی او که دحرفونوپه حساب او که د کلماتوپه حساب سره؟

﴿جواب﴾: که آیتونه سره برابروی یابرابروالی ته نژدی وی نو دآیتونوحساب ته به اعتباروی چی ددویم رکعت قرأت ددریو آیتو څخه زیات نه وی او که آیتونه په طول اوقصر(اُوږدوالی اولنډوالی) کی فرق سره لری نوبیاحروف او کلماتوته اعتباردی. (فتاوٰی دارالعلوم ۲/۲۵۵ بحواله ردالمختار ۱/۵۱۰ فصل فی القرآن)

ددریو آیتونوپه زیاتوب به کراهیت تنزیهی راسی. (طحطاوی ص: ۱۹۳) خوداپه هغه کوچنی سورتو کی دی دکم چی آیتونه په کوچنی والی او لوی والی کی سره نژدی نژدی وی. خوپه غټوسورتونو کی دکم چی په آیتونو کی دلوی والی او کوچنی والی ښکاره فرق وی بیادحروفوحساب ته اعتبار سته. ددی داحاصل دی چی که په دوئیم رکعت کی کم یوسورة ویل سوی

وی اودهغه زیات حروف چی داولنی رکعت دسورة دنیمائی سره برابر وی یادهغه څخه زیات وی نوکراهیت به وی کنی کراهیت بیانسته. کم سورتونه چی دحضور ﷺ څخه ثابت سوی دی هغه په کراهیت کی نه دی داخل.(فتاوی محمودیه ۲/۱۶۵ بحواله شامی)

## ﴿په هر رکعت کی یوسورت ویل﴾

سُنت طریقه داده چی یوسُورت دی په اول اودوئیم رکعت کی تکراراً نه وائی بلکه مختلف سورتونه دی په هر رکعت کی دترتیب دخیال ساتلوسره ووائی. دمثال په توګه په اول رکعت کی قُلْ یٰاَیُّهَا الْکٰفِرُوْنَ اوپه دوئیم رکعت کی قُلْ هُوَاللّٰهُ اَحَدٌ بایلوویل سی. اودارقم کله کم سورة اوکله کم سورت ویل پکاردی. داسی دی نه کوی چی په اول رکعت کی قُلْ هُوَاللّٰهُ اَحَد ووائی اوپه دوئیم رکعت کی هم قُلْ هُوَاللّٰهُ اَحَد ووائی. داطریقه دغیر مقلدینوده چی په هر رکعت کی سورة اخلاص یعنی قُلْ هُوَاللّٰهُ اَحَد دی مکرر وویل سی. البته دکم سړی چی بل کم سورة نه وی پیادنو بیاخومجبوری ده. پرواه نکوی. نوهغه خلق چی حنفیان دی هغه دی دسُنت طریقی په برابرخپل قرأت وائی. په هر رکعت کی دی دسورة فاتحی الحمدلله وروسته دی مختلف سورتونه دترتیب مطابق ووائی. آنحضرت محمد ﷺ همیشه مختلف سورتونه په لمانځه کی ویلي دی داسی ئی نه دی کړی چی صرف



سورة اخلاص یعنی قُلْ هُوَاللّٰهُ اَحَد دی په هر رکعت کی ویلي وی. (فتاوی دارالعلوم ۲/۲۴۳ بحواله ردالمختار ۱/۵۰۸)

کراراً؛

## ﴿سُنت قرأت﴾

**﴿سوال﴾**: دلمانځه په کتابو کی دالیکلی دی چی دمثال په ډول دمابنام په لمانځه کی دلَمْ یَکُنِ الَّذِیْنَ څخه ونیسی بیاتروالناسُ پوری قرأت کول سُنت دی. ددی دامطلب دی چی دقرآن حکیم څخه دی په دغه وخت کی دومره اندازه قرأت وویل سی څومره اندازه چی ددغه سورتو ده. اویاددغه سُورتو څخه قرأت کول زیات ثواب لری؟

**﴿جواب﴾**: سُنت خوداده چی دغه سورتونه ووائی. اوکله کله ددغه سُورتو څخه علاوه دنوروسورتوویلوثبوت هم راغلی دی. لیکن په عامووختوکی دی دغه سورتونه وائی. (فتاوی محمودیه ۲/۱۷۱ بحواله شامی ۱/۳۶۲)

## ﴿په هر رکعت کی پوره سورت ویل﴾

**﴿سوال﴾**: یوه امام صاحب دسهارپه لمانځه کی په اول رکعت کی دسورة یٰسٓ آخری رکوع وویل اوبیاپه دوئیم رکعت کی ورپسی دسورة والصآفات اوله رکوع پوره وویل نوآیاداسی کولو څخه لمونځ صحیح کیږی اوکه نه؟

**﴿جواب﴾**: دداسی لمونځ کولو څخه لمونځ صحیح کیږی او؛ مونځ ئی نه

فاسدیږی بلکه صحیح دی.لیکن په یوه رکعت کی یوسورة ویل افضل دی.

(فتاوی محمودیه ۲/۲۰۰ بحواله فتاوی عالمگیری ۱/۷۸)

## ﴿دامام لپاره تحمیدافضل دی﴾

﴿سوال﴾:امام دسَمِعَ اللّٰہُ لِمَنْ حَمِدَہٗ څخه وروسته رَبَّنَالَکَ الْحَمْدُ هم ووائی او که یوازی ئی مقتدی ووائی؟

﴿جواب﴾:دامام درَبَّنَالَکَ الْحَمْد ویلو کی دواړه قولونه سته.ویل ئی افضل دی.(احسن الفتاوی ۱/۳۱۲ بحواله ردالمحتار ۱/۴۴۵)

## ﴿دامام لپاره آمین ویل څنګه وی؟﴾

﴿سوال﴾:امام دسورة فاتحه ویلو څخه وروسته آمین ووائی او که نه؟

﴿جواب﴾:دامام اومقتدی دواړو لپاره آمین ویل صحیح دی.(احسن الفتاوی ۳/۳۱۲ بحواله ردالمحتار ۱/۴۵۹)

## ﴿په رموز او اوقافو باندی ددریدو او نه دریدو بحث﴾

﴿سوال﴾:"اَلْحَمْدُلِلّٰهِ رَبِّ الْعٰلَمِیْنَ۝ اَلرَّحْمٰنِ الرَّحِیْم" "مِنْ شَرِّالْوَسْوَاسِ الْخَنَّاسِ ۝ الَّذِیْ یُوَسْوِسُ". "عَلٰی کُلِّ شَیْءٍ قَدِیْرٌ ۝ نِ الَّذِیْ خَلَقَ الْمَوْتَ وَالْحَیٰوةَ" (الآیة) که پرهغه آیت چی "لا" باندی وی ساودریدل یابنده سوه او وقف وسی اوآخری لفظ دوئیم وارنه ووائی اومخته ولاړسی نوپه لمانځه کی



په کم کم تاوان راځی؟دغه رقم که په دریم مثال کی ئی وقف وکړی نو مخته په الَّذِیْ ووائی او که نِالَّذِیْ ووائی؟

﴿جواب﴾:پرهغه آیت باندی چی "لا" علامه وی دضرورت په وخت کی په وقف کولو کی څه نقصان نسته.اودماقبل لفظ دوئیم وارویلو ضرورت نسته.او په لمانځه کی هیڅ خلل نه راځی.

او په دریم مثال کی الَّذِیْ اونِ الَّذِیْ دواړه ویل صحیح دی.خودوقف په حالت کی الَّذِیْ ویل پکاردی.(فتاوی دارالعلوم ۲/۲۲۷)

اصله خبره داده چی په نَسْتَعِیْنُ وقف کول اوکول دواړه روادی.دغه رقم په قُلْ هُوَاللّٰهُ اَحَدٌ ۝ باندی آیت کول اونه کول دواړه ثابت دی.نو که آیت سی نواِهْدِنَا او اَللّٰهُ الصَّمَدُبه وویل سی.او که وقف ونه کړی نونُاهْدِنَا او نِالصَّمَدُ به وویل سی.په معنٰی کی ئی څه فرق نه راځی.قرأت دواړه رقم کیږی خوزیات په نستعینُ اوپه اَحَدٌباندی آیت جوړول پکاردی.او اِهْدِنَاالصِّرَاطَ الْمُسْتَقِیْمَ اواَللّٰهُ الصَّمَدُ جلاجلاویل ثابت دی.نوپه دی وجه امام ته د څه شی ضرورت نسته چی هغه دی نُاهْدِنَا اونِاللّٰهُ الصَّمَدُووائی بلکه څنګه ئی چی اکثره قاریان وائی هم هغه رقم دی ئی ووائی.خواتفاقاًکه امام داسی وویل نوپه دی به اعتراض نه کوئ.اوغلط مه ورته وایاست.(فتاوی دارالعلوم ۲/۲۴۶)



## ﴿که امام دتجوید رعایت نه کاوی نو...﴾

﴿**سوال**﴾: که دامام تجوید زده وی او بیا هم قرأت په تجوید سره نه وائی مثلاً د آیت پر ځای ونه دریږی او یا د آیت څخه بغیرئی ساه اخیسته، پر وقفه یا سکته باندی ئی ساه اخیستله او ودریدی، دوقف او وقف لازم او دوقف النبی ﷺ خیال نه ساتی او یا دمد پر ځای باندی قصر و کړی یائی دنون اظهار پر ځای باندی ئی اخفاء وکړه نو لمونځ ئی صحیح کیږی او که نه؟

﴿**جواب**﴾: لمونځ ئی صحیح دی.(فتاوی دار العلوم ۲/ ۲۳)

## ﴿دامام دبعضی الفاظو دوه واره قرأت کول﴾

﴿سوال﴾: په قرآن مجید کی بعض ځایونه کوچنی حروف لیکلی وی. مثلاً "بَصۜطَة ج، هُمُ الْمُصَۜيْطِرُوْنَ، عَلَيْهِمْ بِمُصَۜيْطِرٍ" ددی څخه کم حرف دوئیم وار ویل کیږی. زمونږ په علاقه کی دغه حروف دوه واره ویل کیږی آیا دا صحیح دی؟

﴿**جواب**﴾: لفظ بَصۜطَة ج، هُمُ الْمُصَۜيْطِرُوْنَ او عَلَيْهِمْ بِمُصَۜيْطِرٍ باندی لوړ "س" دلیکلو څخه دا مطلب دی چی دغه لفظ د "س" څخه ویل سوی دی او د "ص" څخه هم ویل سوی دی. یعنی که تلاوت کونکی ئی د صاد 'ص' څخه ووائی هم ئی لمونځ صحیح دی او که ئی د 'س' څخه ووائی هم صحیح دی



او ددی کلمو دا مطلب نه دی چی دغه کلمی دی دوه واره وویل سی. بلکه چی دکم قاری اتباع و کړی دهغه په مطابق دی ووائی.(فتاوی دار العلوم ۲/ ۲۳۴ بحواله جلالین شریف سورة غاشیة ص۴۹۸)

## ﴿دوخت دتنګی له وجهی دسهار په لمانځه کی کوچنی سورت ویل﴾

﴿**سوال**﴾: دسهار په لمانځه کی وخت تنګ ؤ وله دی امله امام صاحب په اول رکعت کی سورة کافرون او په دوئیم رکعت کی سورة اخلاص (قُلْ هُوَ اللّٰهُ اَحَدٌ) ووائی. وروسته یو صاحب اعتراض و کړی چی لمونځ مکروه سو. تا باید لوی سورت ویلای وائی. صحیح خبره څه شی ده؟

﴿**جواب**﴾: هغه لمونځ بی له څه کراهیته صحیح سو. داویل چی دا لمونځ مکروه تحریمی سو دا خبره غلطه ده. یو وار حضرت محمد ﷺ دسهار په لمانځه کی قُلْ اَعُوْذُ بِرَبِّ الْفَلَقِ او قُلْ اَعُوْذُ بِرَبِّ النَّاسِ ویلی دی. نو ددی څخه معلومه سوه چی کله وقت تنګ وی یا سفر او یا دبل کار له وجهی دچا تلوار وی نو بیا دسهار په لمانځه کی دکوچنی سورتونه ویل صحیح دی. (فتاوی دار العلوم ۲/ ۲۳۷ بحواله ردالمحتار فصل فی القرأة ۱/ ۵۰۳)

## ﴿په اول رکعت کی سوره مزمل او په دوئیم کی الٓمٓ ویل﴾

﴿**سوال**﴾: امام صاحب دماښام په لمانځه کی دالحمدلله وروسته دسورة

مزمل اوله رکوع وویل اوپه دوئیم رکعت کی ئی دالّم رکوع وویل اوسُجده سهوئی هم ونه کړه، دالمونځ صحیح سواو که نه؟

﴿جواب﴾: په دی صورت کی لمونځ صحیح سو. اوسُجده سهوهم نه لازمیږی. لیکن په راتلونکی کی داسی دقرآنی ترتیب خلاف قرأت نه کوی ولی چی داسی ویل په فرائضو کی مکروه دی.

## ﴿دکوچنی سورت فاصله ساتل﴾

﴿سوال﴾: امام په اول رکعت کی اِذَاجَاءَ اوپه دوئیم رکعت کی ئی قُلْ هُوَ اللّٰهُ اَحَدٌ ووائی نولمونځ ئی صحیح سواو که نه؟

﴿جواب﴾: په فرضو کی داسی کول قصداًچی دیوه کوچنی سورت فاصله په مابین کی راولی لکه څنګه چی په صورت مسؤله کی ذکرسو مکروه دی اولمونځ ئی صحیح دی. اوکه سهواً داسی وسونو په هغه کی هیڅ کراهیت هم نسته. اوپه نوافلو کی مطلقاً کراهیت نسته. (فتاوٰی دارالعلوم ۲/۲۴۰ بحواله ردالمحتارفصل فی القرأة ۱/۴۹۸)

## ﴿دکوچنی سورت اندازه﴾

﴿سوال﴾: هغه کوچنی سورتونه کم دی چی په اول رکعت اوپه دوئیم رکعت کی دقرأت کولوپه مابین کی پریښول سی نوبیالمونځ مکروه کیږی؟

﴿جواب﴾: هغه سورتونه قصارمفصل دی. چی دلم یکن الذین څخه ونیسی



یاد قرآن مجید ترآخره پوری دی. (فتاوٰی دارالعلوم ۲/۲۴۴ بحواله ردالمحتار فصل فی القرأة ۱/۵۰۴)

## ﴿په یوه رکعت کی دوه سورتونه ویل﴾

﴿سوال﴾: دماخوستن اوسهارپه لمانځه کی امام صاحب په یوه رکعت کی دوه سورتونه ووائی نوپه لمانځه کی خوبه څه کراهیت نه راځی؟

﴿جواب﴾: په یوه رکعت کی دوه سورتونه ویل خلاف اولیٰ دی. لمونځ کیږی اود خلاف اولیٰ څخه مراد مکروه تنزیهی دی. (فتاوٰی دارالعلوم ۲/۲۵۵ بحواله رد المحتار فصل فی القرأة ۱/۵۱۰)

## ﴿یوسورت په دور کعتو کی ویل﴾

﴿سوال﴾: دیوه سورت رکوع په اول رکعت کی ویل اودغه سورت یابل سورت رکوع په دوئیم رکعت کی ویل اویاپوره یوسورت ویل په دوئیم رکعت کی یایوسورت په دوور کعتو کی ویل جائزدی اوکه خلاف داولیٰ څخه دی؟

﴿جواب﴾: اول جواب خودادی چی دا ټول داستحباب څخه خلاف دی دحنفیانوپه نیزسُنت اومستحب دادی چی په یوه رکعت کی ټول سورت په فصل کی دفقهاؤ د ترتیب مُوافق دی ووائی دامعروف دی اودفقهی په کتابو کی مذکوردی.

نو دسورت یو جزء ویل خلاف افضل او خلاف مستحب دی دکم چی حاصل کراهیت تنزیهی راځی نه کراهیت تحریمي.(فتاویٰ دارالعلوم ۲۴۴/۲ بحواله ردالمحتار فصل فی القرأة ۱/۵۰۴)

## ﴿دآیت شروع پریښوول او نور ویل﴾

**﴿سوال﴾**:امام دسورة فاتحی وروسته دسورة انافتحنا دآخری رکوع دآخری آیت څخه مُحَمَّدٌ رَّسُوْلُ اللهِ پریښوی او دوَالَّذِیْنَ مَعَهٗ څخه ئی ووائی لمونځ وسوا و که نه؟

**﴿جواب﴾**:لمونځ وسو مګر دآیت شروع پریښوول ښه کار نه دی.(فتاویٰ دارالعلوم ۲۶۳/۲ بحواله ردالمحتار فصل فی القرأة ۱/۵۱۰)

## ﴿دضآلّین پر ځای باندی دالّین ویل﴾

د "**د**، **ظ**، **ض**" حروفو دجلاحیثیت او جلامخارجو کی څو شک نسته او په دی کی هم شک نسته چی په قصده سره سړی یو حرف دبل حرف په مخرج کی ادا کړی نو دا ډیره سخته بی ادبی ده او ډیر خله دلمانځه د فساد باعث ګرځی. لیکن کم خلق چی معذوره وی او دغه حروف صحیح نسی اداکولای او سره له دی خپل کوشش کوی، نو د دوی لمونځ هم صحیح دی.

او حرف '**دال**' ډک ویل ښکاره خبره ده چی پخپله یو حرف نه دی بلکه هغه '**ضاد**' دی، چی دخپل مخرج څخه پوره نسی ادا نو کم سړی چی په



قصده سره خالص دال یا خالص ظاء ووائی نو په هغه سړی پسی لمونځ نه کوی. مګر هغه سړی چی '**دال**' ډک ووائی تاسو په هغه سړی پسی لمونځ کوی او کم سړی چی دطاقت او وس لرلو سره '**ضاد**' د'**ضاد**' په مخرج کی نه اداکوی هغه ګنهګاره هم دی او که چیری دبل لفظ دبدلیدو څخه معنیٰ بدله سی نو لمونځ هم نه صحیح کیږی. او که چیری دکوشش او سعی باوجود '**ضاد**' دخپل اصل مخرج څخه نسی ادا نو بیا هغه معذوره دی او دده لمونځ صحیح دی.

او کم سړی چی پخپله پرسم ویلو باندی قادروی نو په داسی معذوره پسی لمونځ کولای سی مګر کم سړی چی قصداً خالص "د" او یا خالص "ظ" ووائی نو په هغه پسی لمونځ نه کیږی.(فتاویٰ رشیدیه کامل ص: ۲۷۴ و ص: ۲۸۴)

## ﴿دضاد په باره کی دمولانا محمدشفیع صاحبؒ فتویٰ﴾

دعوامو لمونځ خو بی له څه تفصیله او تنقیح څخه صحیح کیږی هغه که "ظاء" ووائی او یا "دال" یا "زاء" او نور داسی. ولی چی هغه پر دی باندی نه دی قادر. او دوی ګڼری هم داچی مونږ صحیح حرف ادا کړی. او دقرّاء مجودینو او دعلماء کرامو دلمانځه په باره کی تفصیل دی. که چیری غلطی په قصده یا دبی پرواهی په وجه سره وی نو بیا خو لمونځ فاسدیږی. او که چیری دسبقت اللسان او یا دنه تمیزله وجهی وی نو بیا جائز دی.(جواهر الفقه ۳۳۸/۱)

خبر داری الیکن دجواز او عدمِ فساد څخه دانه ثابتیږی چی بی فکره
دی همیشه غلط ویل جائزوی او ویونکی ئی هم گنهکاره نه وی. بلکه دخپل
قدرت او گنجائش په مطابق دصحیح ویلو کوشش او دهغه لپاره کوشش
کول ضروری دی. کنی بیابه گنهکاره وی. که څه هم لمونځ به نه وی فاسد.
لکه څرنگه چی د مصری چاپ عالمگیری څلورم باب جلد ۱ ص: ۷۴ کی
تصریح موجوده ده. ﴿احقرمحمدشفیع الدیوبندی غفرله، خادم دارالأفتاء
دارالعلوم دیوبند ۲۰ جمادی الاولیٰ ۱۳۵۱ھ﴾

## ﴿لمونځ فاسدونکی غلطی﴾

دغلط ویلو څخه چی کم لفظ پیدا کیږی دهغه په باره کی امام اعظم ابوحنیفه رحمه الله تعالیٰ علیه او امام محمد رحمه الله تعالیٰ علیه په دی کی بحث نه کوی چی هغه لفظ دقرآن څخه دی او که نه. ددوی په نیز ضابطه او قانون دادی چی دویلو په مابین کی په یوه کلمه کی زیاتوب اویا کمی په وجه په دی شرط چی معنیٰ بالکل بدله سی لمو نځ فاسدیږی. او که چیری داسی نه وی نوبیانه فاسد یږی. لکه "فَمَالَهُمْ لَايُؤْمِنُوْنَ" کی چی "لَا" حرف پریږدی. یا "وَعَمِلَ صَالِحاً فَلَهُمْ اَجْرُهُمْ" پر ځای باندی "وَعَمِلَ صَالِحاً كُفْراً فَلَهُمْ اَجْرُهُمْ" ووائی نولمو نځ ئی فاسد یږی. او دکمو حروفو چی امتیاز کول په مشکل سره کیږی که چیری هغه دیوه بل پر ځای باندی وویل سی نوبیالمو نځ نه فاسد



یږی. لکه 'سین'، 'صاد' او 'ضاد'، 'ظ' او 'ذال' او نور داسی. اوپه کمو کی چی امتیاز آسان وی هغه که چیری دیوه بل پر ځای باندی وویل سی او معنیٰ ئی بالکل بدله سی نولمونځ فاسدیږی. لکه چی د طَالِحات پر ځای چی صالحات وویل سی نولمونځ فاسدیږی.

او که چیری دالفاظو دبدلیدو څخه معنیٰ بالکل بدله سی نو دلمانځه فاسد والی یقینی دی. او که بالکل نه وی بدله سوی نوبیالمونځ نه فاسد یږی. لکه چی د عَلَيْهِمْ پر ځای باندی خَبِيْرٌ وحَفِيْظٌ او داسی نور الفاظ ووائی نو لمونځ صحیح دی.

او دوَعْداً عَلَيْنَا اِنَّا كُنَّا فٰعِلِيْنَ پر ځای باندی د غٰفِلِيْنَ ویلو څخه لمونځ فاسد یږی. او که چیری ددو جملو الفاظ بدل سی او معنیٰ ئی هم بدله سی نو لمونځ ئی فاسد دی. لکه اِنَّ الْاَبْرَارَ لَفِیْ نَعِيْمٍ وَاِنَّ الْفُجَّارَ لَفِیْ جَحِيْمٍ کی جَحِيْمٍ پر ځای باندی نعیم او دنعیم پر ځای باندی جحیم دویلو څخه لمونځ فاسدیږی. او که چیری معنیٰ نسی بدله لکه دلَهُمْ فِيْهَا زَفِيْرٌ وَّشَهِيْقٌ پر ځای باندی شَهِيْقٌ وَّزَفِيْرٌ ووائی. نو بیالمونځ صحیح دی. (فضائل الایام والشهور ص:۱۲۷)(اشرف الایضاح ص:۱۳۲ وامدادالمفتین ص:۲۸۵۶)

## ﴿که دآیت یوه حصه پاته سی او معنیٰ بدله نسی نولمونځ به صحیح وی﴾

﴿سوال﴾: امام صاحب په لمانځه کی سورة جمعه ویل په مابین کی آیت بِئْسَ مَثَلُ الْقَوْمِ الَّذِينَ كَذَّبُوا بِآيَاتِ اللَّهِ سهواً ځنی پاته سو لمونځ وسوا او که نه او سجده سهو کیږی او که نه؟

﴿جواب﴾: په دی صورت کی په لمانځه کی هیڅ نقصان نه راغلی. او سُجده سهو هم نه راغله. ولی چی سُجده سهو دواجبو په پریښوولو باندی لازمیږی او دلته خو د واجب په اندازه باندی قرأت ادا کړه سوا او دمابین ځخه د قرأت پاته کیدو ځخه څه نقصان نه راځی. (فتاوی دار العلوم ۴/۷۷ بحواله رد المحتارباب زلة القاری ۱/۵۹۱)

## ﴿د درو (۳) آیتوو روسته لمونځ فاسدونکی غلطی﴾

﴿سوال﴾: که چیری امام د دریو آیتو ځخه زیات قرأت ووائی او بیا فاحش غلطی وکړی نو لمونځ فاسدیږی او که نه؟

﴿جواب﴾: لمونځ فاسدونکی غلطی هروخت لمونځ فاسدوی. البته که چیری دغه غلطی بیرته راو ګرځوی او صحیح ئی ووائی نو لمونځ ئی صحیح کیږی. (فتاوی دار العلوم ۴/۷۷ بحواله ردالمحتارباب زلة القاری ۱/۵۹۱)

## ﴿په لمانځه کی پر لیکل سوی شی باندی نظر لګیدل﴾

لمونځ کونکی په لمانځه کی یو لیکل سوی شی ووینی او په هغه باندی پوه سی نو په دی صورت کی لمونځ نه فاسدیږی. ولی چی دا کار د



لمونځ کونکی نه دی. بلکه دا غیر اختیاری دده په دماغ کی راځی. ولی چی عام طور پر دی باندی ستر ګی موښتلی. او کتونکی په هغه باندی پوهیږی. له دی امله علماء فرمائی چی دلمونځ کونکی ومخ ته دی داسی شی نه ایږدی ولی چی دشبهاتو ځخه پرهیز کول ضروری دی. او دصحیح مذهب په موجب سره لمونځ صحیح کیږی. (**اشرف الایضاح شرح نورالایضاح ص: ۱۳۷**)

## ﴿دحنفی امام د دُعاء قنوت لپاره رعایت کول﴾

﴿سوال﴾: حنفی امام ،دشافعیؒ مذهبو مقتدیانو درعایت لپاره دسهار لمانځه په ددوئیم رکعت په قومه کی دومره توقف وکړی چی شافعیؒ د دُعاء قنوت ځخه خلاص سی. نو دا څه رقم دی؟ دده لمونځ کیږی او که نه؟ په داسی امام پسی لمونځ کول صحیح دی او که نه؟ که چیری په ده پسی لمونځ وسی نو لمونځ مکروه کیږی او که نه؟ او په کمو کارو کی دشافعی مقتدی رعایت کول دحنفی لپاره جائز دی، دشافعیؒ مقتدی درعایت کولو وروسته دسلام ځخه ترمخه سُجده سهو کولای سی او که نه؟

﴿جواب﴾: په دُرمختار کی راغلی دی چی "دامام دنورو مذهبو دمقتدیانو لکه شافعی المذهب رعایت کول مستحب دی لیکن په دی شرط چی دخپل مذهب دمکروه سره نسی مخامخ". او امام شامیؒ فرمائی چی په مکروهاتو کی مکروه تنزیهی هم شامل دی. یعنی که چیری درعایت کولو ځخه دخپل

مذهب مکروه تنزیهي هم راتلي نوبیادي رعایت نه کوي.پس بناء علیه امام حنفي دي د سهارپه لمانځه کي درکوع څخه وروسته دومره توقف نه کوي چي پوره دُعاء قنوت کي وویل سي ولي چي دومره وخت دریدل مکروه دي اوپه شامي کي ئي دغه مثال ور کړی دی چي درکوع وروسته دیر دریدل پریښودول واجب دی(یعني کم دی دریږي)په دی توقف کي ترک د واجبوراځي.کم چي مکروه تحریمي دی.له دی جهته په داسي امام پسي لمونځ کول مکروه دی.اودارقم دسلام څخه له مخه سجده سهو کول حنفي د مقتدي درعایت کولو پر سرباندی کول نه دی صحیح.ولي چي دامکروه تنزیهي دی. لکه څرنګه چي دشامي په جلد(۱)ص:۵۹۵کي راغلي دی.(فتاوی دارالعلوم۴/۱۰۴بحواله ردالمحتارکتاب الطهارة مطلب في ندب مراعات الخلاف ۱/۱۳۶)

## ﴿داامام قنوت نازله ویل﴾

دحنفیانوپه نیزدیوحادثي یاواقعي پروخت صرف دسهارپه لمانځه کي د رکوع څخه وروسته ددوئیم رکعت بي له لاسوپورته کیدودُعاء قنوت (نازله) ویل جائزدی.اوپه باقي لمنځوکي نه دی جائز.اوبي له دڅه واقعي د راتګ څخه دهیڅ وخت په لمانځه کي ویل نه دی جائز.

لاسونه به ئي ایله وي.ولي چي پردغه موقع باندي دلاس ترلو روایت



نه دی راغلي.اودُعاء قنوت ویلولپاره لاس پورته کیدل هم دحنفي قواعدو سره نه دی راغلي.له دی امله هوط اوبهتره خبره داده چي لاسونه ایله پریږدي اومقتدیان دی قرارآمین ووائي.(فتاوی دارالعلوم۴/۱۸۹و۴/۱۹۲ بحواله ردالمحتارباب الوتروالنوافل ۱/۶۲۸)

کله چي دکفارولخواپرعامومسلمانانوباندي دهرقسم ظلم اوتشدد کیږي چي دهغه عام مسلمانان پریشانه وي، په داسي وخت کي که چیري یوامام دسهارپه لمانځه کي دعاء قنوت نازله ددوئیم رکعت درکوع څخه وروسته کله کله ووائي نو ګنجائش سته.استحباب هم ثابتیږي.مګرداویل اتفاقاً کیږي.داسي نه چي ددی معمول جوړ سي.اودارقم که چیري یو سړی یوازی په نوافلوکي ووائي نوددی ګنجائش سته.اومقتدي دی دامام پروقفو باندي آمین وائي.(فتاوی محمودیه ۲/۱۳۸بحواله شامي ۱/۴۵۱)

## ﴿دُعاء قنوت نازله﴾

اَللّٰهُمَّ اهْدِنَا فِيْمَنْ هَدَيْتَ وَعَافِنَا فِيْمَنْ عَافَيْتَ وَتَوَلَّنَا فِيْمَنْ تَوَلَّيْتَ وَبَارِكْ لَنَا فِيْمَا اَعْطَيْتَ وَقِنَا شَرَّ مَا قَضَيْتَ اِنَّكَ تَقْضِيْ وَلَا يُقْضٰى عَلَيْكَ وَاِنَّهٗ لَا يَذِلُّ مَنْ وَّالَيْتَ وَلَا يَعِزُّ مَنْ عَادَيْتَ تَبَارَكْتَ رَبَّنَا وَتَعَالَيْتَ وَنَسْتَغْفِرُكَ وَنَتُوْبُ اِلَيْكَ وَصَلَّى اللّٰهُ عَلَى النَّبِيِّ الْكَرِيْمِ. اَللّٰهُمَّ اغْفِرْ لَنَا وَلِلْمُؤْمِنِيْنَ وَالْمُؤْمِنٰتِ وَالْمُسْلِمِيْنَ وَالْمُسْلِمٰتِ وَاَلِّفْ بَيْنَ قُلُوْبِهِمْ وَاَصْلِحْ ذَاتَ بَيْنِهِمْ وَانْصُرْنَا عَلٰى

عَدُوَّکَ وَعَدُوَّهُمْ. اَللّٰهُمَّ الْعَنِ الْكَفَرَةَ الَّذِيْنَ يَصُدُّوْنَ عَنْ سَبِيْلِكَ وَيُكَذِّبُوْنَ رُسُلَكَ وَيُقَاتِلُوْنَ اَوْلِيَآئَكَ. اَللّٰهُمَّ خَالِفْ بَيْنَ كَلِمَتِهِمْ وَزَلْزِلْ اَقْدَامَهُمْ وَاَنْزِلْ بِهِمْ بَأْسَكَ الَّذِيْ لَاتَرُدُّهٗ عَنِ الْقَوْمِ الْمُجْرِمِيْنَ.

## داامام سُتره دمقتدیانو لپاره کافی ده

سُتره هغه شی ته وائی چی لمونځ کونکی ئی وخپل مخ ته دروی. هغه که دلرګی وی دیوال وی او که نور. اوددی سُتری دریدلو شخه دا مقصددی چی ددی په ذریعه دسجدی ځای په معلوم سی. او کم سړی چی دلمونځ کونکی تر مخه تیریږی نو هغه به نه ګنهګاره کیږی.

دسُتری ضرورت هلته په کارراځی چیری چی لمونځ کونکی په خلاص اوبی پردی ځای کی لمونځ کوی. که چیری په مسجدکی لمونځ کیږی یاپه هغه ځای کی لمونځ کیږی چیری چی دچادتیریدلو خطره نه وی نوبیاهلته دسُتری ضرورت نسته.

دسُتری اُو ږدوالی دی دیوه لاس شخه کم نه وی. اوددی پُنډوالی دی کم ترکم دیوی ګوتی په اندازه باندی وی. اودجماعت په صورت کی د امام سُتره دټولومقتدیانوله طرف شخه کافی ده. یعنی که چیری داامام ومخ ته سُتره وی نودمقتدیانودمخه شخه دتیریدلو هیڅ ګناه نسته. هغه که د هغوی ومخ ته یوشی پروت وی او که نه. لیکن دسُتری ددی خوا شخه تیریدل جائزنه



دی. هوا که چیری یو سړی په جماعت کی دشرکیدلوپاره په اول صف کی وخالی ځای ته راتیرسی نوبیاپرواه نکوی. په دی صورت کی ګناه ددوئیم صف والادی ولی چی هغوی ومخ ته راغله چی دمخ صف ئی ډک کړای وائی. (**مظاهرحق جدید** ۱/۶۴۵)

## چی یوی خواته ئی سلام کرځولی وی اویوشوک ئی مخ ته تیرسی

**سوال**: زیددلمانځه شخه یوی خواته سلام کرځولی وُوچی بکرئی د مخه شخه تیرسو، نو آیابکر ګنهګاره سوا که نه؟ یوعالم دین وائی چی ودواړو خواوُته سلام کرځول واجب دی. له دی امله بکر ګنهګاره دی دده وینا صحیح ده؟

**جواب**: په دی صورت کی بکرنه دی ګنهګار. ولی چی لمونځ داول سلام سره ختم کیږی. بلکه دلفظ السلام علیکم دویلوشخه اول لالمونځ پوره کیږی. دواړه سلامونه ویل واجب دی. مګردوئیم سلام دلمانځه شخه د باندی واجب دی. له دی امله که چیری یوشوک دالسلام لفظ شخه وروسته اودوعلیکم لفظ شخه ترمخه اقتداء وکړی نوداقتداء ئی نه صحیح کیږی.

(احسن الفتاوی ۱/۴۰۶ بحواله ردالمحتار ۱/۴۳۶)

## ﴿په څومره فاصله کې تیریدل پکار دي؟﴾

﴿**سوال**﴾: دلمونځ کونکي ترمخه درې یا څلور صفونه پریږدي او بیا تیریږي دا جائز دي او که نه؟

﴿**جواب**﴾: که چیرې په دومره کوچنی مسجد، خونه یا غولي کې لمونځ کوي چې دهغه ټوله رقبه (۴۰) لاسه (۳۶×۸ مربع میټر) څخه کمه وي نو بیا د لمونځ کونکي ترمخ تیریدل مطلقاً جائز نه دي. هغه که نژدې تیریږي او که لیرې په هر حال کې ګناه سته. البته که چیرې خلاصه علاقه وي یاد (۳۶×۸ مربع میټر) علاقه وي او یاددې اندازې څخه زیات مسجد لوی یا لویه خونه وي او یا لوی غولي وي او هلته لمونځ کیږي نو د سجدې د ځای څخه و نیسي بیا تر هغه ځایه پورې تر کمه ځایه چې طبعاً نظر سیږي په هغه ځای کې تیریدل جائز نه دي. د هغه څخه هغه خواته تیریدل جائز دي.

ما (مصنف) ددې اندازه و لګول دا د سجدې د ځای څخه و یوصف ته نږدې ؤ. له دې جهته دلمونځ کونکي د ولاړې د ځای څخه ددو (۲) صفونو اندازه باندې تقریباً اته فټه (۴۴×۲ میټره) هغه خواته تیریدل جائز دي.

لیکن دعامو عبارتو څخه دفقهاؤ متبادر مفهوم دادی چې څلویښت ۴۰ مربع لاسونه (۹۰ مربع فټ یا ۳۶×۸ مربع میټره) مراد دي. (احسن الفتاوی ۳/۴۱۰ بحواله ردالمحتار ۱/۵۹۳)



لوی مسجد یا لوی مکان یا میدان وي نو ددوني اندازې څخه لیرې تیریدل جائز دي چې که لمونځ کونکي خپل نظر د سجدې پر ځای و کړي او تیریدونکی دې و نه ویني. (کفایت المفتی ۳/۴۴۷)

پس که چیرې یو سړي د بانډې پر فرش باندې لمونځ کوي نو په دننه درجه کې و مخ ته تیریدلای سي. (فتاوی دارالعلوم ۴/۱۰۱ بحواله ردالمحتار باب مایفسدالصلوٰۃ ومایکره فیها ۱/۵۹۳)

## ﴿دستری مختلف صورتونه﴾

﴿**سوال**﴾: که چیرې یو لمونځ کونکي وخپل مخ ته دستی بسته او یا کالي کښیږدي. نو دده دمخه څخه تیریدل جائز دي او که نه؟

﴿**جواب**﴾: ستره باید کم از کم دیوه لاس په اندازه باندې جګه وي. ددې څخه په کمه ستره کې اختلاف سته. راجح قول دادی چې دیوه ذراع په اندازه باندې دې وي. که چیرې یو لاس ستره میسره نه وي نو بیاددې څخه په کمه باندې هم صحیح کیږي. او دضرورت په وخت کې دستری څو صورتونه دي. مثلاً:

(۱) داسي یوشي چې دیوه ذراع څخه کم وي.

(۲) لکړه او داسي نور پر مځکه باندې اچول چې و لاړیدلای نسي.

(۳) و مخ خواته لیکه کشول. لکړه یا لیکه طولاً یعني دقبلې پر مخ باندې اچول

زیات بهتره ده. که څه هم عرضاًهم جائز دی.

(۴)جاء نمازیا کالی واچوی اوپرهغه باندی لمونځ وکړی.

(۵)که چیری دوه کسان دلمونځ کونکی ترمخه تیریږی نویودی خپل شاد لمونځ کونکی وخواته وکړی اوهغه بل دوئیم دی تیرسی.اودارقم دی هغه تیر سوی سړی داسی چم وکړی.اواول سړی دی تیرسی.

(۶)یوصحیح قول داهم دی چی خلوینبت لاسه(۶۰×۲۵مربع میتره)یاد دی څخه زیات غټ مسجداوپه صحراء کی دی دسجدی د ځایه څخه هغه خواته تیریدل بی له ستری هم جائز دی .(احسن الفتاوی ۳/ ۴۱۱ بحواله ردالمحتار ۱/ ۵۹۳)

## ﴿بیده سړی ته مخ کول اولمونځ کول﴾

**﴿سوال﴾**:یوسړی بیده دی که چیری سړی دده ومخ ته بی له سُتری لمونځ وکړی نوداجائزدی او که نه؟ که چیری داسی پروت وی اویانه وی نوبیادډی څه حکم دی؟

**﴿جواب﴾**:په دواړوصورتو کی جائزدی.په دی شرط چی دپروت سړی مخ به دلمونځ کونکی وخواته نه وی.بلکه دبام یادقبلی وخواته وی.البته که چیری پرپروت‌سړی باندی کالی پروت وی نوبیاپه هرصورت کی جائز دی.(احسن الفتاوی ۳/۴۳۵)



## ﴿دباران په وجه لمونځ‌ماتول﴾

**﴿سوال﴾**:دمسجدپه غوالی کی باجماعته لمونځ اداکیدی.باران په زوره شروع سونو آیالمونځ مات کړی اوپه مسجدکی دننه ئی اداکول جائزدی او که نه؟

**﴿جواب﴾**:دباران په وجه سره لمونځ‌ماتول جائز نه دی.البته دباران څخه ویوچاته دناجوړی خطره وی یادلندیلو څخه دری نیمی ماشی(۴۲×۳گرام) دسپین زرودقیمت په اندازه مالی تاوان ورسیدی نوداسی سړی بیالمونځ پریښولای سی.(احسن الفتاوی ۳/۴۳۸)

## ﴿دامام صاحب په تیاره کی لمونځ ورکول﴾

**﴿سوال﴾**:دفرضولمنځوپه وخت امام صاحب رونامړه کړی او که لمونځ ورکوی.بلکه تراویح هم ورکوی.پرپوښتنه کولوباندی ئی وویل چی حضرت محمدﷺ اکثره خپل لمنځونه په تیاره کی کړی دی.صحیح مسئله څه رقم ده؟

**﴿جواب﴾**:داشرعی مسئله نه ده.بتی مره کول اوپه تیاره کی د لمانځه د کولو هیڅ تاکیدنسته.دضرورت په وخت دضرورت په اندازه باندی رُ نا استعمالول اوبیاپه هغه کی لمونځ کول بلاکراهیته صحیح اوثابت دی.د ضرورت اودضرورت څخه زیاته رُنااستعمالول په اسراف کی داخل دی

او دا کار ممنوع دی.(فتاوی محمودیه ۲/۲۰۸)

## ﴿په لمانځه کې یو څوک خلیفه کول﴾

دفقهاؤ په اصطلاح کې استخلاف ودې ته وائي چې دامام یا دمقتدیانو څخه یو داسې نیک سړی دامام نائب جوړ کړي چې دامام پر ځای باندې هغه سړی دلمانځه تکمیل وکړي.دا صورت دیو سبب په وجه منځ ته راځي. مثلاًیو امام دجماعت سره یو یا دوه رکعته یا ددې څخه زیات لمونځ پوره کړي او بیا په مابین کې داسې یو کار پیښ سی چې هغه دمقتدیانو سره دلمانځه دپوره کیلو څخه منع کوي.لکه یو ناګهانه مرض یا بې اودسي ور پیښ سي یا داسې یو بل کار مانع صلوٰة ورپیښ سي نو په داسې صورت کې دا روادی چې امام خپل دشا لمونځ کونکو څخه یا دموجودو خلقو څخه یو سړی دامام په طور باندې را مخ ته کړي ددې لپاره چې پاته لمونځ دمقتدیانو سره پوره کړي.

که چیرې امام داسې ونکړي او مقتدیان پخپله دخپل مابین څخه یو سړی انتخاب کړي او ددې امام قائم مقام ئې کړي.ددې کار لپاره دا شرط دی چې نه به مخ اړه وي او نه به کمه خبره کوي.

ممکنه ده چې څوک دا ووائي چې آخر دامام دقائم مقامه دجوړیلو ضرورت څه شي دی؟ آیا آسانه طریقه نسته چې داسې کم خنلېراسي چې وامام ته دلمانځه پرمخ بیولو مانع وي نو هغه لمونځ مات کړي او بل یو نیک



سړی امام جوړ کړي او په جماعت سره لمونځ اداکړي.

ددې جواب دادی چې دشریعت اسلامیه په نظر کې لمونځ ډیرد احترام ور عمل دی.له دې امله کله چې کم انسان په لمانځه کې مشغوله سو او دخضوع او خشوع سره دخپل رب په حضور په دُعاباندې مصروف سو نو ده ته دا ښائي چې دی دې په دغه حالت کې واُوسي تر څو چې دلمانځه څخه خلاصیږي.چنانچه کله په دې حالت کې یو عمل پیښ سي نو دالازمه ده چې هغه بیرته پوره سي او دتلافي لپاره ئې سُجده سهو وسي.او دا رقم که چیرې کمه خبره راسي نو جماعت یا لمونځ دې باطل کړي نو هغه دې دلمانځه څخه لرې سي او بل څوک دې ددې دپوره کیلو لپاره خپل نائب وټاکي.

ددې ټولو امورو څخه مقصد دادی چې یو وار شروع سي نو بیا دې هغه په پوره ډول سره اداکړه سي.ولې چې دشریعت اسلامیه په نظر کې دهغه پوره کول ضروري دی.دکم څخه چې په هیڅ حالت کې باید غفلت ونسي.

(کتاب الفقه ۱/۲۱۱،۲۱۲)

## ﴿دخلیفه دجوړولو اسباب﴾

دخلیفه دجوړولو اسباب څه کیدلای سي؟ په دې باره کې امام اعظم ابو حنیفه رحمه الله تعالٰی علیه فرمائي چې دخلیفه جوړولو سبب دا کیدای سي چې دامام دبې اختیاری په حالت کې یو حدث ور پیښ سي.مثلاً دلمانځه په

وخت کی هوا(ریح)خارج سی یاچیری وینی یابله مُرداری کم چی دانسان د بدن څخه راوزی راوبهیږی(نوبیاامام خلیفه جو ړولای سی)لیکن که چیری نجاست ورو لګیږی چی دلما نځه دجاری کیدو څخه مانع ګرځی یاداچی د امام ستر(عورت)خلاص سی.یاداسی یوه بله خبره وړپیښه سی نوپه داسی حالاتو کی دامام لمونځ فاسدیږی اوددی سره سره دمقتدیانولمونځ هم ځی.

په دی صورت کی یوځوک نائب جو ړول نه دی صحیح.اودارقم چی امام په زوره وخاندی یالیونتوب یابی هوښې اونورداسی حالتونه پرراسی د کم تفصیل چی به دخلیفه دجو ړولوپه شرائطو کی راسی.نوبیاهم دی ځوک خلیفه نسی جوړولای.

ځوک خلیفه کول هغه وخت جائزدی کله چی امام دفرض قرأت د اندازی داداء کولو څخه هم عاجزه وی.دغه رقم که امام ته پخپله د څه تاوان یا دمال دضائع کیدواندیښنه راپیښه سی نوهغه ته داجائزدی چی ځوک خلیفه کړی بلکه پکارده چی دی لمونځ مات کړی اودمقتدیانوچی هرڅومره وس ورسیږی نودغه لمونځ دی دسره څخه بیاوکړی.(کتاب الفقه ۷۱۲/۱)

## ﴿په لمانځه کی دخلیفه دجوړولو مسئلی﴾

دحنفیانوپه نیز(دامام)یوځوک خپل خلیفه جوړول افضل دی.که امام یوځوک خپل خلیفه(نائب)جو ړنه کړی اونه په مقتدیانوکی چاخلیفه



جوړ کړی اونه په مقتدیانو کی ځوک پخپله بغیردخلیفه جو ړیدلو څخه په مخ کې ودریږی نولمونځ به ئی باطل وی.نوکه په وخت کی ګنجائش ؤونو دالمونځ دی بیرته دوئیم وار راوګرځوی.که وخت تنګ ؤونوخلیفه جوړول به واجب وی.په دی مسئله کی دحنیفانوپه نیزپه جمعه اوپه نورو لمنځوکی فرق نسته.

که امام ځوک خپل خلیفه کړی اومقتدیانو ځوک بل سړی انتخاب کړی نوامام چی ځوک خلیفه کړی دی دهغه څخه علاوه به په بل سړی پسی لمونځ صحیح نه وی.که په مقتدیانو کی یو سړی چاخلیفه کړی نه وی اوپخپله رامخ ته سی او ټول لمونځ ئی ورکړی نولمونځ به ئی صحیح سی.خو که امام یاپه مقتدیانو کی چانه وی خلیفه کړی اوځوک پخپله بی له د خلیفه جوړیدو څخه رامخکی سی اوخلقو ځانته ځانته لمونځ وکړی نودټولو لمنځونه باطل دی.(کتاب الفقه ۷۱۳/۱)

## ﴿که دامام اودس مات سی نوڅه حکم ئی دی؟﴾

**﴿سوال﴾**:که چیری دامام اَودس مات سی اوهغه په لمانځه کی یوځوک خلیفه جوړیدل وغواړی نوددی به څه صورت وی؟

**﴿جواب﴾**:داستخلاف(خلیفه جوړولو)دتصحیح دری شرطونه دی.

(۱)دخلیفه دمتعین کیدوورسته پاته شرطونه صرف دامام لپاره دی.د خلیفه

اودمقتدیانو دلمانځه لپاره نـدی. کـه چیری ددی وروروسته امام یومنافی فعل
وکړی نودخلیفه او مقتدیانو لمونځ صحیح کیږی.

(۲) که چیری خلوینبت لاسه (۲۰ مربع فټ ۲۵×۶۰ مربع میتره) څخه په
کوچنی مسجد کی یاددی څخه په کوچنی غولی کی جماعت وی نودامام د
دی ځایه څخه دوتولو څخه دمخه اول بایدخلیفه متعین وی. اوکه چیری په
پراخه علاقه کی وی اویادذکرسوی مقدارپه اندازه یادهغه څخه زیات لویه
خونه اویالوی غولی وی نودقبلی وخواته د ستری څخه اوکه ستره نه وی
نوبیادسجدی دځایه څخه دتیریدوله مخه دی خلیفه معلوم کړی.

(۳) په خلیفه کی به دامامت صلاحیت وی یعنی بنځه یانابالغه به نه وی.

دخلیفه لپاره دانه دی شرط چی دی دی امام معلوم کړی. بلکه که
مقتدیانویو څوک دمخه کړی اویایوسړی پخپله ځان خلیفه جوړ کړی او مخ
ته سوهم جائز دی.

بنه خبره داده چی امام خپل خلیفه جوړ کړی. مسبوق هم خلیفه
جوړیدلای سی. که چیری خلیفه ته دپاته رکعتوعلم نه ؤونوامام دی دګوتو په
اشاره باندی وهغه ته وروبنئي. اوکه قرأت پاته ؤونوپرخوله دی لاس کښیږد
ی اواشاره دی ورته وکړی. سورة فاتحه پاته وی نو پر کم ځای چی ده پری
ایښي وی دهغه ځایه څخه دی دوی کلمی په زوره ورته ووائی. د رکوع



لپاره دی پر ګونډوباندی لاسونه ونیسی اودسجدی لپاره دی پر تندی باندی
لاس ونیسی. دسجده تلاوت لپاره دی پرتندی اوژبه باندی لاس ونیسی
اودسجده سهو لپاره دی پرسینه باندی لاس کښیږدی او د خلیفه سردی
ورخلاص کړی. بیادی داوداسه څخه دخلاصی پوری که چیری جماعت نه
ؤوختم سوی نوبیادی دخلیفه اقتداء وکړی اوکه جماعت ختم سوی
ؤونوبیادی یوازی لمونځ وکړی.

داقتداء په صورت کی دی پاته سوی ارکان اول اداکړی اودامام سره
دی شامل سی. که چیری امام دخلیفه دیوړکن دااداکیلو څخه دمخه اودس
وکړی راغلی نوخلیفه دی شاته سی اواصل امام دی امامت ور کړی په دی
شرط که امام دمسجد څخه نه ؤووتلی. که چیری اوبه دمسجد څخه دباندی
وی نوافضل دادی چی یو څوک خلیفه جوړ کړی خپله دسره څخه لمونځ
راوګرځوی. البته کی چیری وخت تنګ ؤونوبیاخلیفه جوړول واجب
دی. (احسن الفتاوی ۳/۳۱۰)

## ﴿دخلیفه دجوړولوشرطونه اودهغه طریقي﴾

اول شرط دادی چی امام په مسجدکی لمونځ کوی دخپل خلیفه
جوړولو څخه دمخه دی دهغه ځایه څخه نه وزی. که چیری امام دباندی
ولاړی نوبیاخلیفه جوړول نه دامام لپاره صحیح دی اونه دځلکو لپاره. ولی

چې ده دمسجد څخه دوتلو سره دټولو لمنځونه باطليږي.

دوئيم شرط دادی چې څوک خليفه جوړ سي هغه به دامامت اهل وي.له دې جهته که چيرې يو ناخوانده يانابالغ خليفه جوړ سي نو بيا دټولو لمونځ باطليږي.

دخليفه جوړولو طريقه داده چې امام پرخپله پُزه باندې لاس کښيږدي کوږ کوږ دې وشاته سي.داسې دې ځان ظاهر کړي ګواکې دده پزې څخه وينې پخپله راووتې.داکار که څه هم خلاف واقعه وي ليکن په دې کې مصلحت ښکاره دی چې په دارقم دلمانځه نظم او ددې دعمومي آدابو لحاظ وساتل سي.

دريم شرط ئې دادی چې دموجوده لمانځه دجاري کيدو شرائط به پوره وي. که چيرې داشرطونه نه وي نو بيالمو نځ باطليږي.او ددې لپاره خليفه جوړول هم نه دي صحيح.هغه شرطونه يولس(١١)دي.

(١)دادی چې هغه بې اودسي به بې اختياره وي.(٢)داچې هغه بې اودسي به د امام دبدن سره تعلق لري. که چيرې ددباندې څخه مُرداري راغلي وي چې هغه مانع لمو نځ وي نو بيادغه لمو نځ جاري نسي ساتلای. (٣)دادی چې هغه بې اودسي به داسې نه وي چې غسل واجبوي.مثلاًداسې فکر کول چې دهغه څخه انزال وسي.(٤)داچې هغه بې اودسي نابلده نه وي.مثلاًپه زوره خندل يا



بې هوښې راتلل او يا ليونتوب راتګ.(٥)داچې د بې اودسي وروسته به امام يو رُکن نه وي ادا کړی يا تللی نه وي.(٦)داچې داسې يو حرکت به ئې قصداً نه وي کړی چې هغه دلمانځه سره منافي وي. مثلاً په بې اختياري کې چې کمه بې اودسي ورپيښه سوې ده هغه وروسته ئې په قصده خبرې نه وي کړې.(٧)داچې غيرضروري عمل به ئې نه وي کړی. مثلاً داچې واُوبوته نژدې وي خودې ليرې په اُوبو پسې ولاړ سي.(٨) داچې بې له څه مجبوري يادرش له وجهې دومره ځنډدخليفه په جوړولو کې وکړي چې په هغه وخت کې يورُکن اداسي.(٩)داچې په لمانځه کې دې ودته دا انکشاف نه وي سوی چې دې خودلمانځه له مخه بې اودسه ؤو (١٠)داچې امام صاحب به په ترتيب کې وي اوده ته به قضاسوی لمونځ نه وي ورپياد سوی.(١١)داچې پاته لمونځ دې ددغه ځايه علاوه بل ځای نه ادا کوي.

له دې امله که چيرې امام يامقتدی ته بې اودسي ورپيښه سي او هغه د اوداسه لپاره ولاړ سي نوداوداسه وروسته بيرته راسي دامام صاحب سره لمونځ کول واجب دي.ليکن ويوازې لمونځ کونکي ته دااختيارسته چې هغه د اوداسه وروسته هلته راسي لمونځ پوره کړي او که بل ځای.(کتاب الفقه على المذاهب الاربعة ٧١٩/١)



## ﴿دبناء دصحت لپاره شرطونه﴾

**﴿سوال﴾**: که چیری دماښام په لمانځه کی یابل لمونځ کی کوی،هغه دوه یا دری رکعتونه کړی وی،اوس دده اودس مات سی اودوئیم وارداوداسه لپاره ولاړی.نوبیابه دی هغه دوه رکعته یایورکعت کوی او که به ئی دسره را کرځوی؟په کموصورتوکی بناء جائزه ده؟په تفصیل ئی راته بیان کړی.

**﴿جواب﴾**:دبناء دجوازلپاره(۱۳)شرطونه دی.

(۱)په بی اودسی یاددی په سبب کی دهیڅ انسان دخل نه وی.که چیری ئی په قصده سره اودس مات کړی اویابل چازخم کی جو ړ کړی وینی ئی خنی وکښي نوبناء نسی کولای.له دی وجهی چی په اول صورت کی نفس حدث اوپه دوئیم صورت کی دحدث سبب یعنی زخم دانسان لخوا څخه دی.دټوخولودوجهی چی ریح یابادخارج سی هغه هم دبناء څخه مانع ګرځی.اودپرچولوڅخه چی ریح ووزی دهغه په بناء کی اختلاف دی.

(۲)بی اودسی به دلمونځ کونکی دبدن څخه وی.که چیری د خارج څخه وی مانع صلوة حدث وی نوهغه بیادبناء څخه ممانرت راولی.

(۳)بی اودسی به موجب غسل نه وی.که چیری په لمانځه کی خوب ورغلی اواحتلام سونوبیابناء نه صحیح کیږی.

(۴)بی اودسی به نادرالوجودنه وی.یعنی لکه په زوره خندل یابی



هوښه کیدل.

(۵)دبی اودسی(حدث)سره به ئی یوړکن نه وی اداء کړی.که چیری ئی په سجده کی اودس مات سواوسرئی دسجدی دپوره کیدوپه نیت راپورته کړی اویاداوداسه لپاره تللی اوپرلاره ئی قرأت وائی نوبیابناء نسی کولای.

(۶)دروانیدلوپه حالت کی به یوړکن نه اداکوی.مثلاًداوداسه وروسته دراګرځیدلوپه حال کی قرأت ویل ، هواپه تګ اوراتګ کی تسبیحات ویل منع نه دی.

(۷)دلمانځه ضدیوکاربه نه کوی.مثلاًدقدرتی بی اودسی(حدث) وروسته په قصده سره بی اودسی(حدث)یاخبری(کلام)یاد څاه څخه اوبه راکښل اونورداسی.

(۸)بی ضرورته به کارنه کوی.مثلاًداچی داوداسه لپاره ځای پریږدی اوددوو(۲)صفوڅخه زیات لیری ولاړسی.هو! که دنژدی ځای سره رش زیات ؤویاپه هیره لیری ولاړی بیاپرواه نکوی.

(۹)بی له ضرورته به ددری واره سُبْحَانَ رَبِّيَ الْأَعْلٰى په اندازه باندی تأخیرنه کوی.که دپوزی وینی نه دریدی اویادبل اندام څخه وینی نه دریدی نو له دی امله ځنډپرواه نکوی.داوداسه سُنتونه دی هم پرځای کړی.که چیری

ئی صرف د اوداسه پر څلوروفرائضو باندی اکتفاء وکړه نوبیائی بناء نه ده جائزه.

(۱۰) پخوانی بی اودسی(حدث)به نه وی ښکاره سوی.مثلاً پرموزه باندی دمسحی دختم کیلو وخت.دمقیم اُوبه لیدل اویادمستحاضه څخه د وخت وتل.

(۱۱) دترتیب ولاخاوندته به قضاء لمونځ نه وی وریپادسوی.البته که ئی پیادورغلی اوقضاء ئی نه وکړه بلکه دوقتی بناء ئی وکړه او بیائی نور زیات څلور رکعاته یعنی ټول ئی شپږ(۶)فرض لمنځونه دده پرذمه باندی سوه نوبیادبناء والالمونځ صحیح کیږی.

(۱۲) که چیری مقتدی ته بی اودسی(حدث)ورپیښه سوی اویاامام ته اودوی یوخلیفه ودراوی اوداوداسه څخه دختم کیلووروسته هم جماعت نه وُوختم سوی او ځای هم داسی وُوچی پرهغه ځای باندی اقتداء نه صحیح کیږی نوداشرط دی چی دا امام یامقتدی دی پرداسی ځای باندی راسی بناء دی وکړی دکمه ځایه څخه چی بناء صحیح کیږی.که چیری داوداسه پر ځای باندی اقتداء کولای سی، یا د اوداسه دختم کیلو له مخه جماعت ختم سوی وی، یامنفردته بی اودسی ورپیښه سوی وی نوپه دی دری صورتو کی ودوی ته اختیارسته چی د اوداسه په ځای کی بناء وکړی یاپخوانی ځای ته را



وګرځی اوهلته لمونځ پوره کړی.خود اوداسه په ځای(ددی صورتوپه حال کی) بناء افضله ده.

(۱۳) امام ته بی اودسی(حدث)ورپیښ سونودی به داسی خلیفه نه جوړوی چی هغه دامامت صلاحیت نلری.داهم دلما نځه ضددی.دکم بیان چی په (۷)نمبرکی تیرسو. مګردخفاء له وجهی دامستقل ذکرسو.په حقیقت کی شرطونه دولس(۱۲)دی.

دذکرسوی شرائطوسره که څه هم بناء صحیح ده خولمونځ دسره کول افضله دی.البته که چیری وخت تنګ وُونوبیابناء افضله ده.بلکه که چیری وخت زیات تنګ وی نوبیاخوبناء واجبه ده.د سره لمونځ د راګرځولو لپاره داضروری ده چی داول لمانځه څخه دی سلام وګرځوی یادی ئی په یو داسی کارباندی ختم کړی چی هغه دلما نځه ضدوی.بیادی نوی لمونځ دسره څخه شروع کړی.بی له سلام ګرځولو یادیو منافی فعل نه کولو څخه بغیرلمونځ بیرته له سره راګرځول صحیح نه دی.(احسن الفتاوی ۳/۴۳۵)

**﴿که امام ته خلیفه جوړول ګران سی نوڅه حکم ئی دی؟﴾**

**﴿سوال﴾**:دفقهی په کتابوکی امام جوړول جائزګڼل سوی دی. مګردا مسئله ډیرکم وبیش راځی.اوخلق ددی څخه په دی ناخبره دی او امام ته خلیفه جوړول ګران کاروی نوپه داسی حالت کی به څه کوی؟

﴿جواب﴾: دفقهي په کتابو کې چې ليکلي دي چې خليفه جوړول جائز دي نو داخبره ضروري نه ده چې جوړ دې سي بلکه هلته ئې داهم ليکلي دي چې استيناف ئې افضله دی.

نو کله چې دارقم حال جوړ سي کم چې تاليکلي دی نو په داسې حالت کې استيناف کول مناسب کاردی. ددې لپاره چې خلق په غلطئ کې ونه لوېږي. پس اول دې لمونځ قطع کړي او دلمانځه يومنافي کاردی وکړي او بيا ده اودس کولو وروسته دې لمونځ دسره وکړي. (فتاوٰی دار العلوم ۳/۱ ۳۰ بحواله ردالمختار ۱/۵۲۲)

## ﴿دامام دسُجدې په حالت کې اودس ماتيدل﴾

﴿سوال﴾: که چيرې دسُجدې په حالت کې اودس مات سي نو خليفه به څه رقم ومصلي ته راځي؟

﴿جواب﴾: په داسې صورت کې دې خليفه راسي او دهغه سُجدې څخه دې شروع کړي. اوامام دې کم چې بې اودسه سوی دی دې پرخپل تندې باندې لاس کښيږدې ددې لپاره چې وخليفه ته دامعلومه سي چې دده اودس په سُجده کې مات سوی دی. دغه سُجده دې بيرته وکړه سي. (فتاوٰی دارالعلوم ۳/۴۰۳ بحواله ردالمحتار ۱/۵۶۲ باب الاستخلاف)

## ﴿چې سورت ئې وائي اَوُدس ئې مات سي﴾

﴿سوال﴾: امام يوسورت وائي چې اودس ئې مات سو. اوس هغه مقتدي چې



دده خليفه سو هغه سورت ئې يادنه ؤ وکم چې امام وائي نواوس هغځنگه وکړي؟

﴿جواب﴾: هغه دې کم بل سورت ووائي اوركوع دې وکړي داضروري نه ده چې هغه سورت دې ووائي. بلکه که چيرې هغه امام دواجب قرأت په اندازه باندې ويلي ؤ نو داخليفه چې دهغه پرځای ودريدی نوفوراً رکوع ته تللای سي. (فتاوٰی دارالعلوم ۳/۴۰۳ بحواله بحرالرائق ۱/۳۹۱)

## ﴿مسبوق خليفه به لمونځ څنگه پوره کوي؟﴾

﴿سوال﴾: امام دما پښين لمونځ ورکاوی. دمقتدي اودس مات سو. کله چې هغه داوداسه کولو څخه بيرته راغلی نوامام يو رکعت کړی ؤ. کله چې هغه سړی راغلی او په لمانځه کې شامل سو نو دامام صاحب اودس مات سو امام صاحب هغه سړی خليفه کړي دکم څخه چې يو رکعت تيرسوی ؤ او اوخپله ولاړی داوداسه لپاره. که چيرې دی دمقتديانو لمونځ پوره کوي نو دده درې رکعتونه جوړيږي او که چيرې خپل رکعتونه پوره کوي نو بيادمقتديا نو پنځه رکعته کيږي. څه به کوي؟

﴿جواب﴾: دکم مقتدي اودس چې مات سو او هغه اوداسه کولوله ولاړی او په دې دوران کې دهغه څخه يو رکعت تيرسو. نو هغه لاحق سو. دته دا حکم دی چې دی دې اول خپل تيرسوی رکعت وکړي. او بيادې دامام سره شريک سي. نوبيا که چيرې ده داسې وکړه نو دده لمونځ دامام سره برابر سو

او که چیرې ده خپل تیرسوی رکعت نه راو ګرځاوی او دامام سره شریک سو او بیادامام او دس مات سو، او امام دغه لاحق امام جوړ کړی نوده ته دا پکار ده چی کله دامام څلورم رکعت پوره سونو دا سړی دی یو مُدرک مقتدی خپل خلیفه جوړ کړی کم چی داوله څخه دامام سره په لمانځه کی شریک وُو. هغه به سلام وګرځوی او هغه بل لاحق دی ولاړ سی خپل رکعت دی پوره کړی.(فتاوی دارالعلوم ۳/۳۷۶بحواله ردالمختار ۱/۵۵۸)

## ﴿دمسبوق دامامت حکم﴾

﴿سوال﴾:دمسبوق امامت صحیح دی او که نه؟مثلاً زیدلمونځ کاوی ،بکر په دوئیم یادریم رکعت کی شریک سو کله چی زیدد لمانځه څخه خلاص سو نو بکر دباقی پاته رکعت لمانځه لپاره ولاړ سو، خالد راغلی دده دشالخوا ئی لمونځ وکړی(یعنی بناء ئی وکړه)دخالدلمونځ صحیح دی او که نه؟

﴿جواب﴾:دمسبوق اقتداء صحیح نه ده.هغه په انفرادی حالت کی دامام د خلاصیدلو وروسته امام نسی جوړیدلای.(فتاوی دارالعلوم ۳/۲۷۶بحواله ردالمختار ۱/۵۵۸)

## ﴿دعمل کثیر او دعمل قلیل تعریف﴾

﴿سوال﴾:عمل کثیر کم چی لمونځ فاسدوی دهغه تعریف څه شی دی؟ که چیرې ئی دمثال سره وضاحت وکړی نو به پوهیدلو کی به آسانی وی.



﴿جواب﴾:دعمل کثیرپه تعریف کی پنځه قولونه دی.

(۱)داسی عمل(کار)چی دهغه فاعل(کارکونکی)دلری څخه څوک وویني نو داخیال ئی راسی چی دا سړی په لمانځه کی نه دی.دکم عمل (کار) څخه چی په لمانځه کی ئی دنه کیدوظن نه وی بلکه خالی شبه وی نو بیاداعمل قلیل دی.

(۲)کم کارچی عموماًپه دواړو لاسو باندی کیږی.لکه کمربند تړل او لنګوټه تړل عمل کثیردی.که څه هم هغه په یوه لاس باندی وتړی.او کم کارچی عادةً په دواړو لاسو باندی نه کیږی که په لمانځه کی هغه په دواړو لاسو باندی وسی نو هغه عمل قلیل دی.لکه واګه تړل او خولی دسر څخه لویدل.

(۳)دری حرکتونه پرله پسی وی.یعنی ددوی په مابین کی دیوه رُکن په انداز ه وقفه نه وی نو بیاعمل کثیردی او که ددی څخه زیات وخت وی نو بیاقلیل دی.

(۴)داسی کارعمل کثیردی کم دفاعل دامقصدوی چی هغه عادةً په یوجلا مجلس کی کیږی.لکه په لمانځه کی چی کوچنی د ښځی څخه شیدی وروډلی.

(۵)دادلمونځ کونکی پررایه باندی موقوف دی چی هغه کم کار ډیر(کثیر) بولی هغه کثیر.

اول دری اقوال ډیرزیات مشهوردی.اوپه حقیقت کی ددری سره حاصل یودی.له دی وجهی چی په دوئیم اودریم قول کی دذکرسوی عمل و فاعل ته دکتوڅخه دغیرلمونځ کولوحالت ظن غالب وی.

**فائده**:په بعضوعباراتو کی ثَلاثُ حَرَکَاتٍ مُتَوَالِیَةٍ پر ځای باندی ثَلاثُ حَرَکَاتٍ فِیْ رُکْنٍ دی.یعنی په څومره وخت کی چی دری واره سُبْحَانَ رَبِّیَ الْاَعْلٰی وویل سی.ښکاره خبره ده چی په دومره وخت کی دری حرکتونه واقع سی.نوبیاهغه مسلسل ورته وائی.

داسی هم ویل کیږی چی دیورُکن سره دمسلسل کیلوشرط هم دی.نوپه یوطویل رُکن کښې چی دری حرکتونه داسی را پیښ سی چی د دوئ په مابین کی دیوه رُکن په اندازه وی.نوپه دی به لمونځ نه فاسدیږی. د اولنی قول مطابق کم چی په حقیقت کی زیات صحیح دی اوداصل حیثیت لری ددریومسلسل حرکتونه مسلسل نه وی نوکتونکی ته په کتودا ګمان نه کیږی چی دی دلمانځه په حالت کی نه دی.اګرکه دغه دری حرکتونه په یوه رُکن کی وی خاص کرکله چی رُکن اُوږد وی اود حرکتونوپه مابین کی چی وقفه هُم زیاته وی.(احسن الفتاوٰی ص:۴۱۹)

## ﴿په سُجده کی ددواړپښودپورته کیدوحکم﴾

**﴿سوال﴾**:که په لمانځه کی دسُجدی په حالت کی دواړه پښې دمځکی



څخه پورته سی نولمونځ به فاسدیږی او که نه؟نو که دلمانځه دفاسدیدو حکم وی نوپه کمه بناء دی؟

**﴿جواب﴾**:په دواړوپښو کی دیوی پښې یوڅه حصه دیوه تسبیح په برابر پر مځکه ایښودل واجب دی.اودیوقول مطابق فرض دی.دریم قول دادی چی داسُنت دی.خواول قول راجح دی.نوکه په ټوله سُجده کی ئی دیوی تسبیح برابرددواړوپښوڅخه دیوی پښې یوڅه حصه پرمځکه باندی ولګوله نوواجب اداء سی.اوکه دومره اندازه ونه لګوی نودواجبودتلوپه وجه به لمونځ واجب الاعاده وی.(احسن الفتاوٰی ۳/۳۹۸)

## ﴿په لمانځه کی دسَتردښکاره کیدوحکم﴾

**﴿سوال﴾**:په داسی کالویاقمیص کی لمونځ کیږی چی هغه دومره تنګ وی چی رکوع له ځی یاسُجدیٰ له ځی نودنامه څخه لاندی خواښکاره سی دکم چی پټول فرض دی.اوپه داسی صورت کی لمونځ واجب الاعاده دی او که نه؟دسترڅومره اندازه چی خلاصه سی نولمونځ نه کیږی؟

**﴿جواب﴾**:که چیری په داسی قمیص کی ئی لمو نځ وکړی اوحال داچی دی په دی باندی خبرؤوچی زماستر ښکاره کیږی یادلاپرواهی له وجهی ئی دسترپټولو کوشش نه ؤو کړی نولمو نځ ئی نه کیږی. که څه هم هغه په ډیر لږمقدارکی وی.او ښکاره کیدل ئی د ډیرلږوخت لپاره وی.اوکه چیری ئی

ستر په غیر اختیاری ډول باندی ښکاره سی نو په هغه کی تفصیل دادی چی که چیری د دری سُبحان الله په اندازه ویلو دیوه اندام یوه څلورمه ښکاره وی نو بیائی لمونځ نه کیږی.او که د دی څخه کمه اندازه وی او یاوقت ئی کم وی نو بیالمونځ کیږی. کم اندام چی ښکاره وی دهغه اندام یوه څلورمه معتبره ده.او که چیری یو اندام دجلاجلا ځایو څخه ښکاره وی او د دی ټولو ځایو مجموعه دیوه اندام دیوی څلورمی حصی په اندازه راسی نو بیالمونځ فاسدوی.

دنامه دبرابر څخه ونیسی بیاد کوناتی پوری دڅلورو خواؤ څخه یو اندام شمارل کیږی.دکوناتی شروع دنامه څخه لاندی دلنډی څخه شروع کیږی. چی ګردی خط دی.(احسن الفتاوی ۳/ ۳۹۹بحواله ردالمختار ۱/ ۳۸۰)

## ﴿په لمانځه کی بجلکی پو ټول څنګه دی؟﴾

**﴿سوال﴾**:په لمانځه کی که چیری بجلکی پوټی وی نو پر لمانځه باندی څه اثر پریوزی؟

**﴿جواب﴾**:دسری لپاره په لمانځه او غیر دلمانځه په دوا ړو حالاتو کی بجلکی پو ټول ناجائز دی او ګناه ده.په حدیث شریف کی پر دغه کار باندی د جهنم وعید راغلی دی.په لمانځه کی ګناه کول نور هم بد کار دی.په لمانځه کی دبجلکی پو ټولو څخه اګر چه لمونځ صحیح کیږی لیکن په متکبرینو کی دشمارله وجهی دغه مکروه دی.حضرت محمد ﷺ بجلکی



پو ټول، ږیره پری کول او غزلی اوریدل دهغه بدو اعمالو په فهرست کی شمار کړی دی د کموله وجهی چی پر قوم لوط باندی عذاب راغلی . (احسن الفتاوی ۳/ ۴۰۴بحواله طحطاوی علی المراقی ص:۱۸۹)

## ﴿دامام سُجدی ته تلل او په ګونډو لاسونه ایښوول﴾

**﴿سوال﴾**:در کوع څخه وروسته سُجدی ته دتلو په وخت کی لاسونه پر ګونډو باندی ایښوول سُنت دی او که مستحب؟

**﴿جواب﴾**:دراولاړیدلو په وخت کی پر ګونډو باندی لاسونه ایښوول مُستحب دی.سُجدی ته دتلو په حالت کی په ګونډو باندی لاسونه ایښوول ثابت نه دی.دعدم ثبوت څخه علاوه په دی کښي نور هم دوه قباحتونه دی.

(۱)عوامو داسُنت یامُستحب ګڼلی دی.

(۲)دقومی څخه سُجدی ته دتلو سُنت طریقه داده چی تر څوئی ګونډی پر مځکه باندی نه وی ایښي تر هغه دی مُلا او سینه نه را کښته کوی.دغه وخت چی څوک په ګونډو دلاس ایښوولو عادت لری نو اکثر دهغه داعادت لیدل سوی دی چی لاګونډی پر مځکه باندی نه وی لګیدلی او دبدن لوړه حصه پر مځکه را کښته سی نو په دی وجه داعادت چونکه دسُنتو دپریښوولو دعادت باعث دی نو څکه قابل احترازدی.(احسن الفتاوی ۳/ ۵۱)

سُنت طریقه داده چی اول دی دوا ړی ګونډی پر مځکه باندی

کښیږدی او دغه رقم دی دواړه لاسونه یو ځای کښیږدی او چی کله راپورته کیږی نو ددی برعکس دی هم دغه شان وکړی.

البته که دعُذر په وجه ګونډی اول ایښوول مشکل وی نو په دی صورت کی دی اول ښئي لاس کښیږدی او بیا دی دواړه ګونډی یو ځای کښیږدی.(احسن الفتاوی ۳/۳۲بحواله ردالمحتار ص:۴۶۵)

## ﴿دامام دسُجدی څخه راپورته کیدل او قمیص سمول﴾

﴿**سوال**﴾: یو صاحب دی چی کله هم دسُجدی څخه راپورته کیږی نو کله په لاس او کله په دواړو لاسو باندی دشادخوالمن سموی. آیادا صحیح دی؟

﴿**جواب**﴾: دقمیص سمولو ضرورت په دوو(۲) وجهو راپیښیږی. یو دا چی قمیص دکمربند څخه لوړودریږی نو دادبعضی مقتدیانو ذهن ور کلوړ وی. او په خشوع کی مُخل کیږی.

دوئیمه وجه ئی داده چی دبعضی خلقو په سرین(کوناتو) کی قمیص بنلسی. دیو داسی ضرورت په وجه سره دقمیص په راکشولو او سمولو کی هیڅ حرج نشته. البته ددی لپاره یو لاس کافی دی. دوئیم لاس استعمالول مکروه دی او بی له ضرورته دیوه لاس استعمالول هم مکروه دی. (احسن الفتاوی ۳/۳۳۷بحواله ردالمختار ۱/۵۹۹)





## ﴿چی په لمانځه کی داُوږو څخه پټو راولویږی نو دهغه حکم﴾

پټو پر اوږو باندی اچول پکاردی. دکالو څړول په لمانځه له دتشویش باعث ګرځی. او دتشویش دلری کولو لپاره یو یادوه واره بنوورول جائز دی. او دغه رقم کالی په لمانځه پرځان باندی څړول ممنوع دی. او دا کارمکروه دی. دا کاردسدل په عمل کی داخلیدو په وجه مکروه دی.(احسن الفتاوی ۳/۳۳۶)

## ﴿په لمانځه کی دواګی سمول﴾

﴿**سوال**﴾: که په لمانځه کی دواګی دخلاصیدو اندیښنه وی نو آیادا په دواړو لاسو باندی بندولای سی؟ یا واګه تینګه کړی؟

﴿**جواب**﴾: اول دی په یو لاس یوه خوا ټینګه کړی او بیا دی دریووارو سُبحان الله ویلو په اندازه باندی وقفه وکړی او بیا دی هغه بله خوا په هغه بل لاس باندی ټینګه کړی. (احسن الفتاوی ۳/۳۳۷)

## ﴿سُجدی ته دتلو په وخت کی کالی راټولول﴾

﴿**سوال**﴾: بعضی خلق چی سُجدی ته ځی نو عادتاً پرتوګ یا لنګ پورته کوی آیادا مکروه تحریمی دی که تنزیهی؟

﴿**جواب**﴾: مکروه تحریمی دی.(احسن الفتاوی ۳/۳۰۷بحواله ردالمختار ۱/۵۹۸)

## ﴿په قیام کی ددواړو پښو ترمابین دفاصلې اندازه﴾

فقهاؤ لیکلی دی چی د څلور ګوتو په اندازه باندی فاصله دقیام په حالت کی د پښو ترمابین ساتل پکاردی. که څه هم زیات وکم کی راسی نو لمونځ به صحیح وی. څه کراهیت نسته. (فتاوی دارالعلوم ۲/۵۳ ا بحواله رد المحتارباب صفة الصلوة بحث القیام ۱/۴۱۴)

## ﴿درکوع څخه دراپورته کیدووروسته سیده دریدل پکاردی﴾

**﴿سوال﴾**: بعضی ائمه چی رکوع وکړی نوسیده نه دریږی اوسُجدی ته ځی نولمونځ ئی کیږی او که نه؟

**﴿جواب﴾**: که درکوع څخه دراپورته کیدووروسته سیده ونه دریږی نو دائی واجب پریښووی. دغه لمونځ قابل اعاده دی. (فتاوی دارالعلوم ۲/ ۱۵۵ بحواله ردالمحتارباب واجبات الصلوة ۱/ ۴۲۴)

## ﴿دسُجدی څخه څلور ګوتی راپورته کیدل اوبیادوئیمه سُجده کول﴾

دبعضی محققینو په قول په دی کی ترک دواجب راځی. اودداسی لمانځه اعاده واجب ده. (فتاوی دارالعلوم ۲/ ۱۵۵ بحواله ردالمحتارباب



واجبات الصلوة ۱/۴۳۲)

## ﴿په سُجده کی دورون اوادُم فاصله﴾

**﴿سوال﴾**: په سُجده کی به ورون اوادُم څومره سره خلاصه وی. آیاقائمة الزاویه جوړول پکاردی؟

**﴿جواب﴾**: په دُرمختار کی راغلی دی چی خپل لاس به بی له تکلف ښکاره کوی اوورون به دنس څخه لیری ساتی. نومعلومه سوه چی په سُجده کی سُنت اندازه دغه ده. اوزاویه قائمه جوړول لازمی نه دی. اوداهم هغه وخت دی چی یوازی لمونځ کوی اوپه جماعت کی نه وی شریک او یاامام وی. که نی داسی دی نه کوی. دکم څخه چی ونوروومقتدیانوته تکلیف ور رسیږی. (فتاوی دارالعلوم ۲/ ۱۶۴ بحواله ردالمختار ۱/ ۲۷۰)

## ﴿دسُجدی څخه دراپورته کیدوپه وخت کی پرمځکه باندی بیله عُذره لاسونه لګول﴾

**﴿سوال﴾**: په دوئیم رکعت کی چی کله دقعدی څخه وروسته ودریږی نو لاسونه هم هغه رقم پرورنوباندی کښیږدی اوولاړسی یاپرمځکه باندی لاس کښیږدی اوبیاولاړسی؟

**﴿جواب﴾**: لاس پر ګونډو اویاپرورنوباندی دی کښیږی اوبیاولاړسی نو

دابهتره ده.او که چیری دضرورت له وجهی پرمخکه باندی لاس کښیږدی وولاړسی نودا هم صحیح دی. (فتاوی دارالعلوم۲/۱۹۰ بحواله ردالمحتارباب صفة الصلوة ۱/۴۷۲)

که امام صاحب دعُذرپه وجه وسُجدی ته دتګ په وخت کی اول لاس ایږدی نودامکروه نه دی.بی له عُذره اول لاس ایښوول مکروه دی. (فتاوی رحیمیه بحواله طحطاوی ص:۱۵۴)

## ﴿په التحیات کی په ګوته باندی اشاره کول سُنت دی﴾

﴿**سوال**﴾:دسرحدعلماء په التحیات کی ګوته پورته کول منع کوی او وائی چی داکاردی په لمانځه کی مه کوی.صحیح خبره څرنګه ده؟

﴿**جواب**﴾:دحنفیانوپه نیزصحیح داده چی په التحیات کی دی دشهادت په ګوته باندی اشاره کول سُنت دی.په دُرمختار کی د ډیرو کتابوپه حوالو سره دشهادت په ګوته باندی اشاره کول ئی صحیح بللی دی .(فتاوی دارالعلوم ۲/۱۹۴ بحواله دُرمختارباب صفة الصلوة ۱/۴۷۴)

## ﴿که دراسته لاس ګوته نسی پورته کولای نوڅه به کوی﴾

که چیری په راسته لاس کی ئی عُذروی او ګوته نسی پورته کولای نوبیادچپه لاس دګوری پورته کیلوحکم نسته.(فتاوی دارالعلوم۲/۱۹۲ بحواله ردالمحتارباب صفة الصلوة ۱/۴۷۴)



## ﴿داشاری په وخت دګوتودکړی حکم﴾

په التحیات کی دتشهدپه ګوته باندی داشاری په وخت داصورت دی چی دابهام اووسطی یوه حلقه جوړه کړی بُنصراوخنصردی بنده کړی. داصورت دحنفی مذهب دفقهی کتابولیکلی دی .(فتاوی دارالعلوم۲/ ۱۹۱ بحواله ردالمحتار ۱/ ۴۷۵)

## ﴿چی په التحیات کی ګوته پورته کړی نوپرکم لفظ بی ئی راکښته کوی﴾

په شرحه منیه کی دامام حلوائی څخه نقل دی چی پرلَآاِلٰهَ دی ګوته پورته کړی اوپرالَّااللهُ باندی دی راکښته کړی.(فتاوی دارالعلوم۲/ ۱۸۹ بحواله ردالمحتارباب صفة الصلوة مطلب فی عقدالاصابع ۱/ ۴۷۵)

## ﴿دګوتوکړی به په التحیات کی ترڅوباقی ساتی﴾

کله چی دی دلَآاِلٰهَ اِلَّااللهُ ویلوپه وخت د ګوتوحلقه جوړه کړی ده نو بیاداترفارغیدولوپوری دی همداسی وساتی.

په شامی کتاب کی بی حسابه روایتونه راغلی دی چی پکښې د عقداصابع داشاری ورروسته دخلاصولوذکرنسته اودا ددی خبری بنه واضح دلیل دی چی حلقه یووارجوړه سوه نوبیائی خلاصول بنه کارنه دی . (فتاوی

دار العلوم ۲/۲۰۲ بحواله ردالمحتار ۱/۳۵۰)

## ﴿په لمونځونو کې دنبي کريم ﷺ قرأت﴾

عَنْ جَابِرِبْنِ سَمُرَةَ قَالَ كَانَ النَّبِيُّ ﷺ يَقْرَأُ فِي الْفَجْرِبِقٓ وَالْقُرْآنِ الْمَجِيْدِوَنَحْوِهَا وَكَانَتْ صَلٰوتُهُ بَعْدُتَخْفِيْفًا۔

**ترجمه**: دحضرت جابربن سمرة رضى الله تعالىٰ عنه څخه روايت دى چې نبي كريم صلى الله عليه وسلم به دسهار په لمانځه كې سورة قٓ والقرآن المجيد او ددغه په رقم نورسورتونه ويل اووروسته به دده مبارک لمونځ سپک ؤو. (صحيح مسلم شريف)

**تشريح**: شارحينو ددې وروستو خط كشي الفاظو دوه مطلبه بيان كړي دي. يو داچې دسهار څخه وروسته يعنې ماپښين، مازيگر، ماښام او ماخوستن داټول به دسهارپه نسبت لږسپک ؤو. او په دې كې به هغوى دسهارپه نسبت قرأت كم فرمايلو.

ددې فقرې دوئيم مطلب ئې دابيان كړي دي چې په ابتدائي دور كې چې كله دصحابه كرامو تعداد كم ؤو اوپه حضور ﷺ پسې به صرف سابقينو اولينو لمونځ كولو دحضور ﷺ لمنځونه به عموماً اوږده ؤو او بيا كله چې وروسته ورورسره ديو ځاى لمونځ كولو تعدادزيات سو اوپه دوئ كې ددوئيمى اودريمى درجې والا اهل ايمان هم راغلل نوبيا هغوى لمنځو نه نسبتاً



سپک سپک كول ځكه چې په جُمعه كې به دلمونځ گزارو تعداد زيات ؤونو په دې صورت كې به ددې امكان زيات ؤو چې څوک به په كښې مريضان وى يا به كمزورى يا به كم همته سپين ږيرى وى چې هغوى ته به بيا اوږد لمونځ دزحمت باعث جوړيږى. (معارف الحديث ۳/۲۴۵)

دسهار په لمانځه كې درسول الله صلى الله عليه وسلم دقرأت په متعلق چې كم حديثونه درج كړي دي او دحديثو په كتابونو كې چې ددې څخه علاوه كم روايت په دې سلسله كې ملاويږى، ددغه ټولو ومخ ته د اېښنو ولو څخه دامعلوميږى چې دحضور صلى الله عليه وسلم قرأت به دسهار په لمانځه كې دنورو لمنځو په نسبت اكثراو بيشتر لږ اوږد ؤو خو كله به (غالباً د څه خاص داعيه په وجه به) هغوى دسهار په لمانځه كې په قُلْ يٰاَيُّهَا الْكٰفِرُوْنَ قُلْ هُوَاللهُ اَحَدٌ، قُلْ اَعُوْذُ بِرَبِّ الْفَلَقِ او په قُلْ اَعُوْذُ بِرَبِّ النَّاسِ باندې هم جمعه وركوله.

دا رقم ددې احاديثو څخه داهم معلومه سوه چې دهغوى عام معمول به دلمانځه پهر ركعتونو كې دمستقلو سورتونو ويل ؤو. خو كله كله به داسې هم كيدل چې ديو سورت څخه به ئې يو څو آيتونه ويل دغه رقم كله به داسې هم وسوه چې هغوى ﷺ به په دواړو ركعتونو كې هم ديو سورت قرأت فرمائي.

دجُمعې په سهار د"الٓمّٓ تنزيل السُجده" او دسورة لا دهر دويلو حكمت

حضرت شاه ولی الله رحمه الله تعالیٰ علیه دابیان کړی دی چی په دی دوارو سورتو کی دقیامت اودجزاء وسزابیان ډیرپه مؤثره توګه سره بیان سوی دی. اوقیامت به هم دجُمعی په ورځ راځی لکه څنګه چی په احادیثو کی راغلی دی پـه دی وجـه به غالباًهغوی دقیامت دیاددهانی اودیادلپاره دجُمعی په ورځ سهاروختی په لمانځه کی دادواړ سورتونه ویل خوښنول. والله اعلم بالصواب

(معارف الحدیث ۳/۲۴۹)

## ﴿دسهار دلمانځه دقرأت اندازه﴾

**﴿سوال﴾**: دامام صاحب دسورة یٰسٓین اوسورة مُلک (تبارک الذی) دیاد باوجوددسهارپه لمانځه کی (۱) وَالضُّحٰی (۲) اَلَمْ نَشْرَحْ (۳) وَالتِّیْنِ او د(۴) سورة جُمعی آخری رکوع وائی، دکم څخه چی دبعضی مقتدیانو دسُنتو د ضائع کیدوبیره وی. نو ددی لپاره شرعی حکم څه دی؟

**﴿جواب﴾**: دسهارپـه لمانځه کی وامام تـه دومـره دمختصرقرأت عادت جوړول دسُنت خلاف اومکروه دی. که څه خاص عُذرنه وی نوامام اومنفرد (یوازی لمونځ کونکی) دی د سهارپه لمانځه کی طوال مفصل یعنی دسورة حُجرات څخه ونیسی اوبیاتـرسورة بروج پوری سورتونو کی دی علیحدة علیحدة یویوسورة جلاجلاووائی. دا سُنت اومستحب دی. یادی د بلَ ځای څخه کم ترکمه څلویښت آیتونه ووائی. څلویښت آیتونـه کم تر کمه دی



خو منځنی درجه پنځوس تـرشپیتو آیتوپوری دی. اوددی څخه لا بهتره داده چی ۱۰۰ آیتونه ووائی.

پـه دی سلسلـه کی دامام اودمقتدی دهمت اوشوق لحاظ به ساتی البته دوخت دتنګی اویادیو خاص عُذرپربناء باندی که قرأت لنډووائی نو بیا پرواه نکوی. او داجائز دی. (فتاویٰ رحیمیه ۱/۱۵۵ بحواله شامی ۵۰۲ وکبیری ص:۳۰۲)

## ﴿دجُمعی په ورځ دسهارپه لمانځه کی سورة سُجده ویل﴾

**﴿سوال﴾**: زیـلـوائـی چـی دجمعی په ورځ دسـهـارپـه لمانځه کـی پـه اولنی رکـعت کی سورة سُجده اوپه دوئیم رکعت کی سورة دهرویل مُستحب دی دا صحیح ده؟

**﴿جواب﴾**: دجـمعی په ورځ دسهـارپه لما نځه کـی پـه اولنی رکـعت کی سـورة سُجده اوپه دوئیم رکعت کی سورة دهر ویـل فی نفسه مُستحب دی خـو پـر دی بـانـدی مداومت (همیشه والی) کول مکروه دی. ځکه داسی نسی چی عـوام داکار کـول واجـب ونه بولی. نن صبادمسجلونو امامانو صاحبانو دا مُستـحـب امربالکل پری ایښي دی. داغفلت دی اوددی اصلاح کول لازم دی. (احسن الفتاویٰ جلد:۳ ص:۸۱)

بی لـه شکـه چی پـه احادیثو کی داسی راغلی دی خو حنیفیه ئی په پر بعضـو اوقـاتـو بـانـدی حمل کوی اوددی په مستقله توګه پـابـنـدی کول نه

خو ښوی.ځکه چې هغوی دسوروتونوتعین دهرلمانځه لپاره منع کوی.خو کله کله که داسی وسی نو حرج نه لری.خودوام یا همیشګی دی نه پرکوی (فتاوٰی دارالعلوم ۲/۲۱۷)

## ﴿دسورتونوتعین کول﴾

رسول الله صلی الله علیه وسلم به دجُمعی دلمانځه په دواړورکعتونو کی علی الترتیب اکثروبیشتربه سورة جمعه سورة منافقون ،سورة اعلٰی یا سورة غاشیه ویل اوداخترونوپه لمنځوکی به ئی هم یاخودا دوا ړه آخری سو رتونه ، سورة اعلٰی یاسورة غاشیه ویل او یا به ئی سورة "قٓ" والقرآن المجید اواِقْتربت الساعة ویلو.

کم حدیثونه چې د پنځه وخته لمنځونواودجُمعی په اوداخترنوپه لمنځونوکی دقرأت متعلق لیکل سوی دی دهغه ځخه مونږته دوی خبری رازده کوی.(۱)دحضورصلی الله علیه وسلم به اکثره دامعمول ؤوچی د سهارپه لمانځه کی به ئی قرأت اُوږدوائی اوزیات به ئی طوال مفصل سورتونه ویل.دما پښین په لمانځه کی به ئی هم څه اندازه اُوږد قرأت وائی دمازیګر لمو نځ به ئی مختصراوسپک وایو.اودغه رقم به ئی دماښام لمو نځ هم مختصرکاوی.دماخوستن په لمانځه کی به ئی اوساط مفصل ویل خو ښول خوکله کله به ئی ددی ځخه خلاف هم وسو.



(۲)په یوه لمانځه کی حضورصلی الله علیه وسلم دهمیشه لپاره نه د یوخاص سورة دویلوحکم کړی دی اونه ئی عملاًداسی کړی دی.البته په بعضو لمنځونوکی اکثروبیشتربعض خاص سورتونه ویل دهغوی ځخه ثابت دی.(معارف الحدیث ۳/۲۶۱)

## ﴿دحضرت شاه ولی الله رحمه الله رأیه﴾

حضرت شاه ولی الله رحمه الله تعالٰی علیه په خپل کتاب حجة الله البالغه کی فرمائی"رسول الله صلی الله علیه وسلم په بعضی لمنځونوکی د څه خاصو مصلحتونو اوفوائدوپیش نظربعضی خاص سورتونه ویل خو ښ کړی دی خوقطعی طورئی نه دهغه تعین کړی دی اونه ئی نوروته ددی تاکید کړی دی چې هغوی دی هم دارقم و کړی نوپه دی باره کی که څوک د هغوی اتباع و کړی(په دغه لمنځونوکی هم دغه سورتونه اکثر وبیشتر ووائی)نو ښه به وی او څوک که داسی ونه کړی نوهغه ته هم څه مضائقه او حرج نسته"(معارف الحدیث ۳/۲۶۱)

نبی کریم صلی الله علیه وسلم به دجُمعی اوداخترونوپه نورو لمنځونوکی سورتونه نه معلوموول.په فرض لمنځونوکی په کوچنی اولویوسورتونو کی داسی یوسورت نسته کم چې هغوی نه وی ویلی.

اوپه نوافلوکی به په یوررکعت کی دوه سورتونه هم هغوی ویل.خو په

فرض لمنځونوکی نه.معمولاً به دهغوی اولنی رکعت ددوئیم رکعت څخه غټ ؤو.

## ﴿په لمانځه کی د"سلام علیکم"ویلو حکم﴾

﴿سوال﴾:که امام دالسلام علیکم دویلوپر ځای صرف سلامُ علیکم بغیر دالف لام څخه ووائی نوڅه حکم ئی دی؟

﴿جواب﴾:دا دسُنت څخه خلاف دی په دی به په لمانځه کی کراهیت راځی.داهغه وخت دی هم په تلفظ کی سلامُ علیکم ووائی کله کله داسی هم وسی چی په الف بـانـدی خلق نه پوه نسی امام خوالسلام علیکم ووائی خو خلق ئی سلام علیکم واوریٔ نودامکروه نه دی.(کفایت المفتی ۳/۴۳۹)

(دالف لام څخه بغیر)سلام علیکم ویل دسُنت څخه خلاف دی نو په دی وجه مکروه دی.امام دی په دی پوه کړه سی چی تصحیح ئی وکړی.

(احسن الفتاوی ۳/۴۴۵بحواله ردالمختار ۱/۴۹۱)

## ﴿په سلام کی صرف دمخ کرځولو حکم﴾

﴿سوال﴾:دلمانځه څخه دوتـولپاره دسلام دګرځولـوپـه وخـت به دقبلی څخه صرف مخ راګرځوی او که سینه هم؟

... صرف مخ ګرځول دسلام سره کافی دی.(فتا... بحواله ردالمختا... ۱/۴۴۲باب اداب الصلوٰة)



## ﴿په سلام کی به مخ څومره راګرځوی؟﴾

عَنْ سَعْدابنِ اَبِیْ وَقَّاص قَالَ کُنْتُ اَرٰی رَسُوْلُ اللّٰہِ علیه وسلم عَنْ یَمِیْنِہٖ وَعَنْ یَسَارِہٖ حَتّٰی اَرٰی بَیَاضَ خَدِّہٖ.(رواه مسلم)

دحـضـرت سـعدبن ابی وقاص رضی الله تعالٰی عنه څخه روایت دی چی ماپه خپله حضرت محمدصلی الله علیه وسلم لیدلی ؤوچی ده مبارک به راسته اوچپـه خواته خپل مخ مبارک ګرځاوی اومـخ مبارک به ئی راسته او چپـه خواته دُومره راګرځوی چی مونږبه ئی دبارخو ګانـومبارکانوسپین والی لیدی.(معارف الحدیث ۳/۳۰۹)

## ﴿دامام څخه مخکی سلام ګرځول﴾

﴿سوال﴾:یوه مقتدی دامام څخه دمخه سلام و ګرځاوی نو آیاددغه مذکور مقتدی لمونځ صحیح سو او که نه؟

﴿جواب﴾:لمونځ ئـی وسـولیکن داسی. کول مکروه تحریمی دی البته که چیری ډیری سـخـتـی مجبوری په صورت کی سلام و ګرځوی کـم چی په لمانځه کی دتشویش باعث ګرځی نوبیادلما نځه راګرځول واجب نه دی. دلته داسوال پیدا کیږی چی دامام متابعت په قصده سره دپریښولوپه وجه به دالمونځ راګرځول پکاروی او کـه نه؟ددی متعلق څه صریح حکم نه دی راغلی.البته دسهواًدواجبوپه پریښوولو کی دسجده سهوی دعدم و جو ب

شخه دامعلومیږی چی دعمدپه صورت کی دلمانځه اعاده واجبه نه ده.

**دونیم جواب**دامام اتباع واجب ده په دی وجه دامام شخه په قصده د مخوالی کول مکروه تحریمی دی البته دریح(هواء اونورداسی) د بیری شخه په بناء کی مخکی کیدلو کی شه کراهیت نسته. (احسن الفتاوی ۱/۲۹۴ بحواله رد المختار ۱/۴۹۰)

## ﴿که په سلام کی دمقتدی دامام شخه مخکی ساه راماته سوه نو دهغه حکم﴾

**﴿سوال﴾**: دمقتدی سادسلام گرځولوپه وخت کی دالسلام علیکم ویلو کی دامام شخه دمخه راماته سوه نو دمقتدی لمونځ وسواو که نه؟

**﴿جواب﴾**: دمقتدی په لمانځه کی په دی صورت کی هیڅ خلل نه راځی (فتاوی دارالعلوم ۲/۱٦۳)

## ﴿په سلام کی دلفظ"الله"د کشولو حکم﴾

**﴿سوال﴾**: مقتدی به دامام دالله اکبرویلوسره فوراًسلام گرځوی؟اکثره د مسجدلواامامان په سلام کی لفظ"الله" ډیرزیات کشوی ،نومقتدی به هم داسی کوی؟یاهغه ودواړوخواؤته دامام شخه اول دسلام کلمات ختم کولای سی؟

**﴿جواب﴾**: په سلام اول کی په لفظ السلام ویلولمو نځ ختم سی په سی وجه اول میم دامام شخه اول ویل مکروه دی اوددی شخه وروسته نورشه د



کراهیت وجه نه ښکاری.(احسن الفتاوی ۳/۳۱۲)

## ﴿دسهاراوماز یگر دلمانځه شخه وروسته دامام مخ گرځول﴾

**﴿سوال﴾**: دسهاراودمازیگر دلمانځه وروسته به امام ښي خواته راگرځی او کیڼي به یابه دمقتدیانوخواته متوجه کیږی؟یومولوی صاحب فرمائی چی راسته خواته گرځیدل او کیڼناستل مستحب دی اومقتدیانوته مخ کول او کیڼناستل داستحباب شخه خلاف دی نوصحیح جواب ئې شه دی؟

**﴿جواب﴾**: فقهاء حضرات رحمهم الله تعالیٰ علیهم فرمائی چی کله امام د فرائضوشخه خلاص سی اوهم پرهغه هیئت باندی ناست وی نودابدعت دی نوپه دی وجه دی امام خپل هیئت بدل کړی،ددی مختلف صورتونه دی یعنی یاخودی دمصلی شخه ولاړسی یادی راسته یاچپه خواته یادمقتدیا نو خواته کیڼینی. که دلمانځه شخه وروسته سُنت کول وی نودهغه د اداء کولولپاره دی دمصلی شخه دمخه یاوروسته یاراسته خواته یاچپه خواته سنی نو سنت دی و کړی دامام هم په دی هیئت قبلی وخواته په پاته کیدلوبه نوی راتلونکوته به دااشتباه وسی چی گواکی جمعه لانده ختم سوی اوداخطره به وی چی هسی نه چی یوشوک نیت پسی و کړی اولمو نځ به ئی نه وی صحیح نوپه دی وجه دامام هیئت نه بدلول مکروه دی.

امام ته پکاردی چی دسهاراودماز یګر دلمانځه وروسته مقتدیانو ته مخ راواړوی اکښینی.البته که دامام سره په اولنی صف کی څوک مسبوق وی نو دهغه ومخ ته کښیناستل مکروه دی.نو په دی صورت کی دی راسته خواته یا چپه خواته کښینی.که دمخ دصف وروسته په هغه بل صف کی څوک مسبوق وی نو دهغه ومخ ته په مخامخ کیلو کی اختلاف دی.علامه شامی د جوازو خواته ترجیح ورکړی ده.(احسن الفتاوی ۳/۲۶۹بحواله ردالمختار ۱/۳۳۲)

## ﴿دلمانځه وروسته امام کمی خواته مخ و ګرځوی او کښیني﴾

﴿سوال﴾:په کمو لمنځونو پسی چی سُنت مؤکده نسته دهغه لمنځو څخه وروسته به امام کمی خواته مخ اړه وی.راسته خواته یاچپه خواته.یادمقتدیانوو خواته.کم قول صحیح دی؟

﴿جواب﴾:په دغه دری سره طریقوباندی صحیح دی.دیوه التزام کول نه دی پکار.راسته خواته متوجه کیدل چی قبله راسته خواته وی نو دااولیٰ دی.

(فتاوی محمودیه ۲/۱۳۴بحواله مراقی الفلاح ص:۱۷۲مصری)

دډعاپه وخت دامام راسته اوچپه خواته را ګرځیدل ددواړو ذکر په حدیث شریف کی راغلی دی او ددواړو خبر اجازت په شریعت کی سته.حضر ت عبدالله بن مسعود رضی الله تعالیٰ عنه فرمائی چی څوک دی په خپل لمانځه



کی دشیطان حیصه نه جوړوی.هغه داچی دی داګمان کوی چی راسته خواته راګرځیدل ضروری دی.ماپه ځوواره رسول الله صلی الله علیه وسلم لیدلی دی چی چپه خواته راګرځیدلی دی.خوداهم دحدیث څخه ثابته ده چی رسول الله صلی الله علیه وسلم به راسته خواته ډیرراګرځیدی.(مشکوٰة المصابیح باب الدُّعاء ص:۸۷)

نومعمول داجوړول پکاردی چی اکثره دی وراسته خواته راګرځی اوکله کله دی چپه خواته هم ګرځیدل کوی.(فتاوی دارالعلوم ۲/۸۹ بحواله غنیة المستملی ۱/۳۳۳)

## ﴿په نورو لمنځو کی دمقتدیانو و خواته مخ ګرځول﴾

﴿سوال﴾:دلته زمونږ په ځای کی چی امام دماپښین ، ماښام او ماخوستن لمونځ وکړی نو مقتدیانو ته راګرځی او دُعاکوی داکار څنګه دی؟

﴿جواب﴾:دا دسُنت څخه خلاف دی.(احسن الفتاوی ۳/۳۱۵)

## ﴿دفرضووروسته دآیت الکرسی شریفی دویلو حکم﴾

﴿سوال﴾:امام ته دفرضو کولووروسته تر څو مره وخته پوری آیة الکرُسی ویل پکاردی؟که امام صاحب تر ډیره وخته پوری ناست ؤ او وویل ئی کول نو ګواکی مقتدی ته دده پیروی کول لازم دی یادُعاکول او په سُنتو کی مشغولیدل؟

﴿جواب﴾:دفرجو څخه وروسته اودسُنتو څخه ترمخه که آیة الکُرسی او تسبیحات اونورداسی شیان په مختصر ډول پوره کړی اوبیاسُنت و کړی نو هیڅ حرج نسته.اودوخت څه اندازه نه ده مقرره.خو ډیرځنډ دی نه کوی او که چیری ئی وزیاتواوراډوویلوته خیال وی نودسُنتوورروسته دی پوره کړی دابهتره خبره ده.اوکه امام تر ډیره وخته پوری ناست وی او ویل کوی نو مقتدیانوته دده اتباع لازمه نه ده.دوئ ته اختیاردی چی دوئ سمدستی ولاړ ی اوکه څه لږډیرول و کړی نوبیاولاړسی سُنت کوی.(فتاوٰی دارالعلوم ۲/ ۶۶ ا بحواله ردالمختارباب صفه الصلوٰة ۱/۴۹۴)

دُعادی ډومره وسی چی پرمقتدیانوباندی ګرانه نسی اودوئ ئی په اوږدوالی باندی تنګ نسی.(کفایت المفتی ۳/۲۸۶)

## ﴿دپنځه وخته لمنځوورروسته دُعاحکم﴾

دپنځه وخته لمنځوورروسته لاس پورته کول اودُعاغوښتل دنبی کریم صلی الله علیه وسلم سُنت دی.په حِصن حُصین نومی کتاب کی راغلی دی چی دُعاته لاس پورته کول اوددی څخه وروسته پرمخ باندی لاس راتیرول دمرفوع احادیثو څخه ثابت دی.وئی ګوری.دلمنځوڅخه وروسته دُعا ګانوسُنت کیدل هم په هغه کی مذکوردی دلمانځه څخه وروسته دُعاپرینبول دسُنت څخه خلاف ده.(فتاوٰی دارالعلوم۲/۱۹۹ بحواله مشکوٰة شریف کتاب الدعوات



ص:۹۵ اودحصن حُصین ص: ۳۰)

دحضرت عرباض بن سارية رضی الله تعالٰی عنه څخه روایت دی وائی چی رسول کریم صلی الله علیه وسلم وفرمایل چی کم بنده فرض لمونځ و کړی اوددی څخه وروسته بنه دزړه داخلاصه دُعاو کړی نودهغه (سړی)دُعاقبلیږی.(معارف الحدیث ۵/۱۳۸)

## ﴿دسهاراومازیګرپه لمنځو کی اوږده دُعا﴾

په کموفرائضو کی چی(وروسته) سُنت مؤکده نسته لکه سهاراو مازیګرپه هغه کی دُعاوی اوږدی کوی اوپه کموفرضوپسی چی سُنت وی نو دفرضوورروسته دی مختصره دُعاو کړی اوسُنت دی اداکړی.اوبیاوروسته د اجتماعی دُعاکولوضرورت نسته.ځکه چی اجتماعی هم یوارده بیائی په دویم واردسُنتو څخه وروسته مقتدیانوته دامام ددُعاانتظارکول اودهغه انتظام کول ضروری نه دی.(فتاوٰی دارالعلوم۲/۱۹۷ بحواله عالمګیری مصری چاپ ۷۲/۱)

**یادونه**:دنفلواودسُنتوکول په کورکی افضل دی.په بعضی ځایو کی دارواج غلط دی چی خلق دجمعی دلمانځه څخه وروسته سُنت و کړی اوبیاهلته د دُعاپاره پاته وی.اوبیاامام دسُنتوورروسته دُعاکوی.د ردالمحتارباب الوتر والنوافل (جلد:۲ ص: ۶۳۸) څخه دامعلو میږی چی د سُنتوپاره خلق دروڼ اوبیاپه اجتماع باندی د دُعا کولورواج دنبی کریم صلی الله علیه وسلم په

زمانه کی نه ؤو. او نه اُوس دهغه الزام کول صحیح دی. ولی چی داعمل د
حدیث څخه خلاف دی.

## ﴿دلمانځه وروسته دُعاکراره وغوښتل سی او که په زوره﴾

په قراره دُعاکول افضل دی که دلمونځ ګزارولحاظ ساتل پکښې نه وی نو کله کله ئی په لږزورباندی دُعا کړی وی نوبیاجائزدی. همیشه په زوره دُعا کولوعادت جوړول مکروه دی. په روایاتو کی په زوره دُعا غوښتل ثابت نه دی. (فتاوی رحیمیه ۱/۱۸۳)

دُعاقرارکول افضل دی که دُعاتعلیم ورکول دی مقصلوی نوبیا په لوړآوازباندی کولو کی هم څه پرواه نسته. خو په دومره لوړآوازدی نه وائی چی دمقتدیانو په لمانځه کی خلل راسی. لمونځ پرسلام باندی ختم کیږی ددی څخه وروسته دُعاکول دلمانځه جُزء نه دی (فتاوی محمودیه ۲/۸۳)

## ﴿ددُعاپه الفاظو کی تخصیص (دځان) کول﴾

امام دی ددُعاالفاظ دځپل ځان لپاره نه خاص وی. که چیری هغه دُعاپه زوره سره کوی لکه چی ووائی "ای زماالله [illegible] پرنبی کریم ﷺ [illegible] (معارف مدینه)
[illegible] کم منفردالفاظ راغلی



دی هغه په دی کی شامل نه دی. ولی چی په لمانځه کی دامام څخه کمه فائده حاصلیږی په هغه کی ومقتدیانوته هم حیصه ورکول کیږی. امام د مقتدیانو نمائنده وی.

او که چیری قراردُعاکوی نوبیاامام ته اجازت دی چی هغه دځپل ځان لپاره خاص دُعاو کړی (دبل چالپاره دی بنرانه کوی) ولی چی مقتدی هم دځپل ځان لپاره دُعاکوی. دارقم په نفس دُعاکی ټول سره شریکیږی. (معارف مدینه ۶/۱۰۰)

## ﴿دامام پر دُعاباندی آمین ویل﴾

**﴿سوال﴾**: دلمانځه وروسته چی کمه دُعادامام سره غوښتل کیږی په هغه که به آمین وائی یاکم چی خوښه ئی سی هغه به غواړی؟

**﴿جواب﴾**: کمه دُعاچی غواړی غواړی دی. دالازمی نه ده چی دامام پر دُعادی (خامخا) آمین ووائی. (فتاوی دارالعلوم ۲/۲۰۱ بحواله ردالمحتار باب صفة الصلوة ۱/۴۸۹)

## ﴿په دُعاکی دمقتدی شریک کیدل﴾

**﴿سوال﴾**: مقتدی ته دامام دسلام وروسته په دُعاکی شریکیدل ضروری دی یا که مستحب؟

**﴿جواب﴾**: مستحب. (فتاوی دارالعلوم ۲/۱۹۰ بحواله ردالمحتاروغنیة المستمل ص:۳۳۰)

که چیرې مقتدی ته یوضرورت ؤواویائی ضروری کارؤونودسلام څخه فوراً په تک کې هیڅ ګناه نسته.اوپرپه دغه باندې هیڅ طعن ویل دې نه کوی او که چیرې دډعادختم کیلوپورې انتظارکوی اودامام صاحب سره په ډعاکې شریکیږی نودابیا ښه ده.اوپه دې کې بیازیات ثواب دی. (فتاوی دارالعلوم ۴/۱۰۳)

## ﴿دډعاپه وخت کې به کم ځای ته ګوری﴾

دډعاوروسته دآسمان وخواته کتل اونظرپورته کول د ډعا هغه ناخوښه صورت دی دکم څخه چی حضرت محمدﷺ منع کړی ده.ولی چی داشکل دالله سره دادب اواحترام اوډعا کونکی سره مناسب نه دی.کیدی سی چی داحرکت دبی ادبی اوبی شرمی باعث جوړسی اودقبلیدلو څخه محروم سی.په دې وجه ددې څخه دځان کتل پکاردی.(حصن حصین:۲۷)

## ﴿په ډعاکې دتلوار کولو څخه پرهیز کول﴾

دحضرت ابوهریرة رضی الله تعالیٰ عنه څخه روایت دی چی نبی کریمﷺ وفرمایل "چی کله دالله څخه ډعاغواړی نوذهغه یقین سره ئې کوی چی هغه ضرورقبوله سی.اوپه دې وپوهیږی اودا په یاد وساتی چی الله پاک دهغه چاډعانه قبلوی دچاچی زړه دډعاپه وخت کې غافل اوبی پرواه وی"ده مبارکﷺ وفرمایل"زمونږ ډعاوی ترهغه پورې دقبلیدلو وړوی تر



کم ځایه چی په هغه کی تلواره نه وی(اوتلواره داده)چی بنده داروائی چی ماډعاوغوښتله لیکن قبوله نه سوه."(معارف الحدیث ۵/۱۲۳و۱۲۵)

## ﴿دډعادختم کیدووروسته کلمه ویل﴾

**﴿سوال﴾**:زمونږپه خواپه علاقه کی داررواج دی چی دډعاوروسته پرمخ باندې دلاس راتیرولوپروخت کلمه طیبه لَاإِلٰهَ إِلَّااللهُ مُحَمَّدٌرَّسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وائی،آیاپه شریعت کی ددې څه ثبوت سته؟

**﴿جواب﴾**:دډعاپه آخرکی درودشریف ویل اودآمین ویلو څخه سوادبل څه دویلو څه ثبوت نسته.له دې وجهې پرمخ باندې دتیریلوپروخت د کلمې طیبې دویلوعادت اورواج بدعت دی.لکه ځنګه چی دخوراک وروسته اویا دتلاوت کولووروسته یو سرې دماثوره ډعاؤپر ځای باندې کلمه طیبه ووائی نوهرسړی هغه په دین کی زیاتوب اوبدعت بولی.(احسن الفتاوی ۱/۳۷۴)

## ﴿دلمانځه ووروسته دامام سره روغبړ کول ځنګه دی﴾

مصافحه(په لاس روغبړ کول)اومعانقه(په غاړه روغبړ کول)پرخپل ځای باندې یوسُنت طریقه ده.سلام کول مصافحه کول اومعانقه کول په عباداتو کی داخل دی.عبادت چی دصاحب شریعت دحکم مطابق اداسی نوبیاهغه په عبادت کی شمارل کیږی اودثواب حقداربه وی.که داسی نه وی نوبیابدعت دی اودثواب پر ځای باندې به ئی عذاب په غاړه وی.د مجمع

البحرین مصنفؒ په خپله شرحه کې دابیان کړی دی چې یو سړی د اختر په ورځ دلمانځه دمخه په عید ګاه کې دنفلو کولو اراده وکړه نو حضرت علي رضی الله تعالیٰ عنه هغه منع کړی.هغه سړی ورته وویل چې ای امیر المؤمنین زه په دې ښه خبریم چې پر دغه کارباندی ماته الله پاک عذاب نه راکوی. حضرت علي رضی الله تعالیٰ عنه وفرمایل چې زه هم په دې ښه خبریم چې الله پاک پر هغه کارباندی چاته ثواب نه ورکوی چې هغه کار حضرت محمد ﷺ نه وی کړی اویائې دهغه ترغیب نه وی ور کړی.نو دا ستالمونځ کول عبث دی اوعبث کار کول حرام دی.نو دابیره سته چې الله پاک تاته پر دغه کارباندی عذاب در کړی.داپه دې وجه چې تادنبی کریم ﷺ خلاف عمل وکړی.(مجالس الابرار ۱۲۹/۸)

تاسې وګورئ چې اذان کول عبادت دی .ددین شعاراویو اسلامي علامت دی.اودجمعې لپاره دوه اذانه او اقامت په پابندئ سره کیږي لیکن داخترولپاره نه اذان کیږي او نه اقامت.

کله چیرې په عید ګاه کې اذان یااقامت وسي نوهر سړی په دې خبر دی چې دا کاربدعت دی.دارقم دمصافحې اومعانقې حکم هم دی.داخترو او د نورولمنځوروسته ددې لازمي کول بدعت دی.

په شامي کې رانقل سوی دی چې دهرلمانځه وروسته دلاس یاد



غاړې روغبړ کولورواج مکروه دی.د دې دلیل دادی چې صحابه کرامو رضی الله تعالیٰ عنهم اجمعین دلمانځه وروسته روغبړنه دی کړی.اودکراهیت یو وجه هم داده چې دادروافضو طریقه ده.

ابن حجر شافعیؒ فرمائي چې خلق دپنځولمنځووروسته چې کم روغبړ کوی هغه بدعت اومکروه دی.په شریعت کې ددې هیڅ اصل نسته.

ابن الحاج المکیؒ په خپل کتاب المدخل کې فرمائي چې داامام لپاره ضروري دی چې خلقوچې کمه طریقه دسهاردجمعې اود مازیګر دلمانځه وروسته چې کم دروُ غبرنوی طریقه رواج کړی ده، بلکه بعض خو بیاد پنځولمنځووروسته هم دروغبړ کولوطریقه اختیار کړی ده،ددې شخه دې خلق منع کړي ولې چې دا بدعت دی.په شریعت کې روغبړدمسلمان سره دملاقات په وخت کې دی نه دا چې دلمانځه وروسته دی.له دې جهته شریعت چې کم عمل مقرر کړی دی هغه دې پر ځای سي اودسُنت خلاف دې خلق رامنع سي.

دمشکوة شریف شارح فرمائي "بې شکه دشرعي روغبړوخت د ملاقات وخت دی.خلق بې له روغبړه سره وینې ،علمي خبرې کوي اوبیاچې لمونځ وکړي نوبیارو غبړسره کوي.دادکم ځای سُنت دی؟ددې وجهې شخه بعضي فقهاؤدا وضاحت کړی دی چې داطریقه مکروه اوبدعت سئیه

دی.(مرقات شرح مشکوة ۴/۵۷۵)

ددی مختصر تصریحاتو پر بناؤ باندی داضروری ده چی د روغبړ شخه دی اجتناب وسی لیکن داسی طریقه دی نه اختیاروی د کم شخه چی په خلقو کی غصه او نفرت وغورځیږی. پر داسی مواقعو باندی دی د ملاعلی قاریؒ د هدایت خیال دی وساتی. هغه فرمائی "چی کله یو مسلمان بی ځایه د روغبړ لپاره تاته لاس دراوږد کړی نو د هغه زړه مه آزاره وه. داسی نه چی د بد گمانی سبب جوړ سی او په قرارئی پوه کړه او د مسئلی د حقیقت شخه ئی خبر کړه." (فتاوی رحیمیه ۳/۷۳)

دامسئله احسن الفتاوی جلد: ۱ صفحه: ۳۵۵ باندی داسی ده "په شریعت کی د روغبړ وخت صرف اول وخت د ملاقات دی، د لمنځوورو سته ده. د لمنځوورو سته روغبړ کول د نبی کریم ﷺ، د صحابه کرامو او ائمه دین رحمهم الله تعالیٰ علیهم اجمعین شخه ثابت نه دی بلکه دا د روافضو ایجاد دی او بدعت دی له دی جهته ددی شخه اجتناب او احتراز واجب دی بلکه بعض حضرات فقهاء رحمهم الله تعالیٰ علیهم په صراحت سره لیکلی دی چی ددی بدعت کونکی ته دی د زجر او توبیخ په ذریعه باندی دی منع سی. که چیری بیا هم ددی کار شخه نسی منع نو بیا دی د قدرت په درلودلو سره هغه ته سزا ور کول سی. البته که چیری ئی د منع کولو طاقت او وس نه وی نو بیا دی نه منع



کوی." (بحواله ردالمختار ۱/۳۳۶)

## ﴿دمؤلف دُعا﴾

رَبِّ اَوْزِعْنِیْ اَنْ اَشْکُرَ نِعْمَتِکَ الَّتِیْ اَنْعَمْتَ عَلَیَّ وَعَلٰی وَالِدَیَّ وَاَنْ اَعْمَلَ صَالِحًا تَرْضَاهُ وَاَصْلِحْ لِیْ فِیْ ذُرِّیَّتِیْ اِنِّیْ تُبْتُ اِلَیْکَ وَاِنِّیْ مِنَ الْمُسْلِمِیْنَ وَتَقَبَّلْ مِنِّیْ هٰذَا الْعَمَلَ وَجَنِّبْنِیْ فِیْهِ عَنِ الْخَطَاءِ وَالنِّسْیَانِ وَاجْعَلْهُ ذَرِیْعَةً لِّلْفَلَاحِ وَالنَّجَاحِ فِی الدُّنْیَا وَوَسِیْلَةً لِّلنَّجَاةِ فِی الْآخِرَةِ.

محمد رفعت قاسمی مدرس دار العلوم دیوبند

۱۰ محرم الحرام ۱۴۰۸ھ مطابق ۴ ستمبر ۱۹۸۷ء بروز جمعه

# ﴿مآخذو مراجع کتاب﴾

| د کتاب نوم | مصنف ومؤلف | مطبع |
|---|---|---|
| معارف القرآن | مفتی محمد شفیع اعظم پاکستان | ربانی بکڈپو دیوبند |
| معارف الحدیث | مولانا منظور احمد صاحب نعمانی | الفرقان بکڈپو ۳۱ نیا گاؤں لکھنو |
| فتاوی دارالعلوم مکمل ومدلل | مفتی عزیز الرحمن صاحب | مکتبہ دارالعلوم دیوبند |
| فتاوی رحیمیہ | سید مفتی عبدالرحیم صاحب | مکتبہ منشی اسٹیٹ (اندیر) سوات |
| فتاوی رشیدیہ کامل | مولانا رشید احمد گنگوہی | کتب خانہ رحیمیہ دیوبند |
| فتاوی محمودیہ | مفتی محمود الحسن صاحب مدظلہ | مکتبہ محمودیہ جامع مسجد شہر میرٹھ |
| امداد الفتاوی | مولانا اشرف علی تھانویؒ | ادارہ تالیفات اولیائے دیوبند |
| فتاوی عالمگیری | علامہ سید امیر احمد | مطبع نولکشور لکھنو |
| کفایت المفتی | مفتی کفایت اللہ دہلوی | کتب خانہ اعزازیہ دیوبند |
| احسن الفتاوی | مفتی رشید احمد لدھیانوی | سعید ایچ ایم کمپنی ادب منزل چوک کراچی پاکستان |
| کتاب الفقہ علی المذاہب الاربعہ | علامہ عبدالرحمن | مطبوعات محکمہ اوقاف پنجاب لاہور پاکستان |
| مظاہر حق جدید | افادات علامہ نواب قطب الدین | ادارہ اسلامیات دیوبند |
| مسائل سجدہ سہوہ | مفتی حبیب الرحمن خیرآبادی | حرا اکیڈمی دیوبند |
| معارف مدینہ | افادات مولانا حسین احمد مدنی | مدرسہ امداد الاسلام صدر بازار میرٹھ |
| ہدایہ | امام ابوالحسن برہان الدین | کتب خانہ رشیدیہ دہلی |
| بدائع وصنائع | علامہ علاؤالدین ابی بکر | پاکستانی |
| صحاح ستہ | ائمہ حدیث | کتب خانہ رشیدیہ دہلی |
| کبیری | .............. | فخر المطابع لکھنو |
| رد المحتار علی الدر المختار | علامہ ابن عابدینؒ | سعید ایچ ایم کمپنی ادب منزل چوک کراچی پاکستان |
| طحطاوی علی المراقی الفلاح | سید احمد طحطاوی | پاکستانی |
| صغیری | .............. | مطبع محمدی لاہور |



| | | |
|---|---|---|
| حصن حصین | باضافۃ حواشی مولانا ادریس صاحب | نصیر بکڈپو بستی نظام الدین دہلی ۱۳ |
| مسائل تراویح مکمل ومدلل | محمد رفعت قاسمی | مکتبہ رضی دیوبند |
| نور الایضاح | امام ابوالحسن برہان الدینؒ | مکتبہ تھانوی دیوبند |
| امداد المفتین | مفتی محمد شفیعؒ | دارالاشاعۃ پاکستان |
| جدید فقہی مسائل | مولانا خالد سیف اللہ | مجلس تحقیقات اسلامی حیدرآباد |
| فتاوی ہندیہ | | نولکشور لکھنو |
| غنیۃ الطالبین | شیخ عبدالقادر جیلانیؒ | مطبع لاہور پاکستان |



—— پای ——

جمعرات ۲۵/ اگست ۲۰۰۵

# ﴿اعتذار﴾

انسان دغلطی یوڅهانچه ده.په دی کتاب کی کوشش داسوی دی چی دکتاب دأردو ژبی څخه بعینه ترجمه وسی.خوکله کله په ترجمه کولوکی جمله بی ډوله سی اواصلی مفهوم نسی ادا.کتاب کی به یو ځای ځای په قوسینو()کی یوه جمله یایوه پیره لیکلی وی هغه دوضاحت لپاره دمترجم اضافه ده.چی هلته نښانی سوی هم ده.هم دا رنګه مونږ ډیرزیار کړی چی د کتابت غلطی ئی حتی الامکان نه وی.خوانسان بیاهم انسان دی.که چیری دجملی یوه غلطی وی او یاد کتابت یوه غلطی وی اوستاسوترنظر راسی نوستاسی به ډیره مننه وی چی مونږته اطلاع را کړی.اومونږته ددی غلطی بخښنه وغواړی.

مننه

ناشر: مولوی حمدالله آغا سعیدی کُتب خانه نوی کوټه